# د کتاب په اړه


د کتاب نوم : د فقهي کتابونو له پاڼو څخه (۳)

لیکوال : مفتي کفایت الله وردګ

د کمپیوټر چارې : محمد نذیر (ذبیح) 03138182431

د چاپ چارې : ابو منظر (افغاني)

د چاپ وار : لمړی

د چاپ شمېره : ۱۰۰۰ ټوکه

ZamZam

Publication Company



زم زم

خپرندویه ټولنه

Zamzam_publication@yahoo.com

00923009808094

00923009101098

Unit R 7 Alwajid Plaza, Faisalcolony Chawk, Dalazak road Peshawar, KPK, Pakistan




# د فقهي کتابونو له پاڼو څخه

په زړونو کې د اسلامي جذبې لرونکو څو ورونو زمونږ ددې لپاره ملا تړلې ده چې تر پورتني نوم لاندې د کتابونو یوه سلسله روانه وساتو پدې سلسله کې مونږ کوښښ کوو چې په ساده او روانه پښتو کې د یني ضروري مسئلې را غونډې او خپلو پښتنو ورونو ته يې وړاندې کړو سره ددې چې پدې موضوع کې کتابونه له وړاندې نه هم ډېر دي هرچا د خپل وس مطابق کوښښ کړی دی مونږ د هغوی د ټولو کوښښونو قدر کوو او د الله ① نه ورته اجر عظیم غواړو لکن په زمزم کې شریکو ملګرو چې ددې سلسلې لپاره کومه نقشه تیاره کړېده هغه تر بهتر څخه هم بهترینه ده پدې سلسله کې به داسې مسئلې را جمع کیږي چې په اسلامي معلوماتو کې څوک د صفر نه واخلي د مهارت تر حد پورې يې ورسوي او ددې سلسلې به له ډېرو صفاتو څخه یو صفت دا وي چې که څوک په ځان ددې د مطالعې التزام وکوي نو بغیر د استاذ نه به په کور کې دی ترېنه داسې مسئلې زده کولی شي لکه ژوندی استاذ چې دده سره په کور کې وي .

پدې کتابونو کې :

تاسې ته ستاسې په ژبه دیني مسائل وړاندې کول .

لتاسې سره د سمې لارې په پیدا کولو کې مرسته کول .

تاسې ته د اسلامي مطالعې لپاره د ښو او فایده منو موادو په لاس درکول .

له لویو کتابونو څخه لویې خبرې تاسې ته ستاسې د اسانتیا لپاره د وړو رسالو په شکل کې درکول .

دیني ضروري مسئلې چې کېدای شي اوس ستاسې هېرې شوې وي بېرته تاسې ته در په زړه کول .

مقدس دین ته په ښکلې پښتو ژبه خدمت کول .

او داسې نور مطلبونه خوندي دي .

پدې سلسله کې مونږ کوښښ کوو چې یوه خبره هم د خپل دماغ نه پکې ځای نه کړو د کتاب په آخر کې به مونږ د هغه فتاواوو او کتابونو لست خامخا ستاسې خدمت ته وړاندې کوو چې مونږ ترېنه اخذ کوو او په دې رساله کې به ټولې خبرې د حضرت امام ابي حنیفه رحمه الله د مذهب او مسلک مطابق وي .

که پدې اړه ستاسې څه ډول اعتراض، سوال، نیوکه، نکته، نظریه او یا مشوره وي نو ددې سلسلې چلونکي به یې لتاسې څخه نه یوازې د کور ودانې په ویلو سره په ورین تندي واوري بلکه د بیا چاپ کولو په وخت به ستاسې مشوره د خپلو کتابونو ښائست وګرځوي

لله الحمد داده ستاسې تر لاسونو پورې ددې مبارکې لړۍ دریمه کړۍ در ورسېده او پدې کړۍ کې مونږ په زکات او ځینو نورو مالي عباداتو بحث کړی دی امید دی چې ستاسې د خوښې وړ به وګرځي.

مننه

د زمزم خپرندویه ټولنې اداره

E-mail: zamzam_publication@yahoo.com
Fb.com/zamzam07



# سریزه

ټول ثنا صفت دی هغه ذات لره چې مونږ یې پیدا کړي یو او پاک رزقونه یې راکړي دي او مونږ ته یې امر کړی دی چې د زړونو او مالونو د پاکولو لپاره صدقات او خیراتونه ورکړو چې په رښتوني نظر ورته و ګورو الله ① زمونږ خیرات ته ضرورت نه لري هغه د خپلې مهرباني له مخې مونږ ته ددې لپاره د صدقې ورکولو امر کوي چې صدقې ورکولو ته مونږ ضرورت لرو او مونږ ته یې ویلي دي :

سورة آل عمران آية ۹۲

وَمَا تُنفِقُوا۟ مِن شَىْءٍ فَإِنَّ ٱللَّهَ بِهِۦ عَلِيمٌ ﴿٩٢﴾

ترجمه: او هغه څه چې تاسې مصرف کوئ الله ① په هغه باندې ښه خبر دی.

همدارنګه رسول الله ﷺ د صدقاتو په اړه فرمایلي دي چې صدقه د مسلمان لپاره په آخرت کې یو دلیل دی فرمایي: (و الصدقة برهان) یعني په ایمان باندې دلیل دی .

په صدقاتو او خیراتونو ورکولو کې چې کومې فایدې الله ① زمونږ لپاره ایښي دي ستاسې خدمت ته به ترینه مشت نمونه خروار لږ وروسته کیږدم تر هغې مخکې د فقهي کتابونو د صفحاتو

نه د صدقاتو او مالي عباداتو قسمونه ، احکام ، په خاصه توګه زکات ، صدقه فطر ، او داسې نورې مسئلې ستاسې خدمت ته ړالی کوم.

د مسلمان په مال کې د الله ① حقونه :

په اصل کې کوم مالونه چې مونږ یې مالکان یو دا هرڅه د الله ① دي په قران کریم کې پدې خبره تصریح شویده چې مونږ پدې مالونو صرف خلیفه ګان یو الله ① فرمایي :

سورت حدید آیة ۷

وَأَنفِقُواْ مِمَّا جَعَلَكُم مُّسۡتَخۡلَفِينَ فِيهِ

یعني نفقه وکوئ دهغه مال نه چې الله ① وربانديې تاسې خلیفه ګان کړي یاست.

رسول الله ♈ فرمایي : ته چې هرڅه د الله ① د رضا لپاره خیرات کړې الله ① به یې اجر درکوي تردې چې په هغه خوراک به هم اجر درکوي چې ته یې د خپلې مېرمن په خوله کې ورکوي. (بخاري)

نو چې دې خبرو ته وکتل شي چې ټول موجوده مال هم د الله ① د رضا لپاره مصرف کړل شي لږ به وي او په پورتني آیت کې چې الله① مونږ ته په نفقه باندې امر کوي ددېنه مراد د الله ① په لاره کې مصرف کول او مال خرڅ کول دي او ددې خرڅ مختلف صورتونه وي چې هغه د انسان په لاس کې په

موجوده مال کې د الله ① حقونه دي چې ستاسې پام ورته را ګرځوم .

د انسان په مال کې د الله ① لمړی حق

# زکات

زکات د اسلام په ارکانو کې په دریمه مرتبه کې دی رسول الله ♈ فرمايي" :**بني الإسلام على خمس :شهادة أن لا إله إلا الله وأن محمداً رسول الله، وإقام الصلاة ، وإيتاء الزكاة، وصوم رمضان ،وحج البيت من استطاع إليه سبيلاً،"**
يعني : اسلام په پنځو شيانو ولاړ دی ددې ګواهي ورکول چې د الله ① نه بغير بل د عبادت وړ نشته محمد♈ د الله ① رسول دی ، مونځ کول ، زکات ورکول ، د رمضان د میاشتې روژه نيول ، څوک چې د ورتلو وس ولري په هغوی باندې حج کول.
زکات ته زکات ددې امله وايي چې زکات پاکي ته ويل کيږي او پدې سره هم د زکات ورکونکي نفس او مال پاکيږي .
د زکات په ورکولو کې لوی حکمت همدادی چې د انسان نفس د بخل نه پاک شي او سخا پکې پيدا شي او که مالدار مسلمانان په صحيح توګه زکات ورکړي له يوه پلوه به د دوی په مالونو کې الله ① ورته زيادت واچوي له بله پلوه به د غريبانو

سره مرسته وشي د هغوی د ژوند څه سهولت به ورته برابر شي او له بله پلوه به زکات ورکونکی د الله ① درحمت مستحق وګرځي لکه الله ① چې فرمايي :

سورت اعراف آية : ١٥٦

وَرَحۡمَتِي وَسِعَتۡ كُلَّ شَيۡءٖۚ فَسَأَكۡتُبُهَا لِلَّذِينَ يَتَّقُونَ وَيُؤۡتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَٱلَّذِينَ هُم بِـَٔايَٰتِنَا يُؤۡمِنُونَ 

ترجمه : او زما رحمت هرشي لره شامل دی ، او زه به خپل رحمت هغه کسانو ته ليکم چې هغوي پرهيز کوي او زکات ورکوي او هغه چې زمونږ په آيتونو باندې ايمان لري.

الله ① په قران کريم کې فرمايي : هغه څوک چې زکات ورکوي الله ① به دهغه سره مرسته وکوي او هغه به د الله ① له لوري نه د مرستې مستحق وګرځي

الله ① فرمايي :

سورت حج آية ٤٠ او ٤١

وَلَيَنصُرَنَّ ٱللَّهُ مَن يَنصُرُهُۥٓۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَقَوِيٌّ عَزِيزٌ ﴿٤٠﴾ ٱلَّذِينَ إِن مَّكَّنَّٰهُمۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ أَقَامُواْ

ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُاْ ٱلزَّكَوٰةَ وَأَمَرُواْ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَنَهَوۡاْ عَنِ

ٱلۡمُنكَرِۗ وَلِلَّهِ عَٰقِبَةُ ٱلۡأُمُورِ ﴿٤١﴾

ترجمه : او مرسته (مدد) به وکړي هرومرو (خامخا) الله ① له هغه چا سره چې مرسته (مدد) ورکوي (دين د) دغه (الله①) ته ، بېشکه چه ا لله ① خامخا قوي (د خپلو احکامو په تنفيذولو کې) ډېر زور واله دی (په هرچا) ... (دغه مهاجر مظلومان) هغه کسان دي چې که چيري قدرت ورکړو مونږ دوی ته په ځمکه کې ( په دشمن باندې د غلبې په اعتبار) نو قائموي دوی (سم اداء کوي به د ټولو حقونو سره) مونځ او ورکوي به زکات او حکم به کوي (خلکو ته) په نېک شرعي کار سره او منع کوي به خلک له بد کار څخه او خاص د الله① په لاس کې ده آخره خاتمه د ټولو کارونو .
په قران کريم کې په سورت توبه کې د مسلمان لپاره د ورور کېدلو لپاره زکات ورکول شرط ګڼل شوي دي الله تعالى فرمايي :

سورت توبه آية ۱۱

فَإِن تَابُواْ وَأَقَامُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُاْ ٱلزَّكَوٰةَ فَإِخۡوَٰنُكُمۡ فِي ٱلدِّينِۗ وَنُفَصِّلُ ٱلۡأٓيَٰتِ لِقَوۡمٖ يَعۡلَمُونَ ۝١١

ترجمه: نو كه توبه وويسته (دوى له كفره) او قائم كړو دوى (سم يې اداء كړو سره د ټولو حقونو) مونځ او وركړو دوى زكات نو په دين كې ستاسې ورونه دي او په تفصيل سره بيانوو (مونږ) آيتونه (د قران حكمونه) د پاره د هغه قوم چې پوهيږي.

په قران كريم كې زكات ته د مسلمانانې جامعې صفت ويل شوى دى الله تعالى فرمايي:

سورت توبه آية ۷۱

وَٱلۡمُؤۡمِنُونَ وَٱلۡمُؤۡمِنَٰتُ بَعۡضُهُمۡ أَوۡلِيَآءُ بَعۡضٖۚ يَأۡمُرُونَ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَيَنۡهَوۡنَ عَنِ ٱلۡمُنكَرِ وَيُقِيمُونَ

ٱلصَّلَوٰةَ وَيُؤۡتُونَ ٱلزَّكَوٰةَ وَيُطِيعُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥٓۚ

أُوْلَٰٓئِكَ سَيَرۡحَمُهُمُ ٱللَّهُۗ إِنَّ ٱللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٞ ٧١

ترجمه : او سړي مؤمنان او ښځې مؤمناني ځينې د دوی دوستان دي د ځينې نورو (په ايمان کې ټول سره يو شان دي) حکم کوي دی په نېکو (چې د الله ① او دهغه د رسول اطاعت دی) او منع کوي له بدو چې ( د الله ① او د رسول نه مخالفت دی) او دروي (له ټولو حقونو سره سم اداء کوي) مونځ او ورکوي دوی زکات او حکم مني د الله ① او (حکم مني ) د رسول الله ♈ دغه کسان زر به رحم وکړي په دوی الله ① بېشکه چې الله ① ښه غالب قوي دی (دحکمونو په جاري کولو کې) ښه د حکمت خاوند (چې هر کار په تدبير او مصلحت سره کوي).

زکات الله تعالى په قران کريم کې د هغه کسانو صفت ګڼلی دی چې د الله تعالى کورونه (جوماتونه) جوړوي الله ① فرمايي :
سورت توبة آية ۱۸

إِنَّمَا يَعۡمُرُ مَسَٰجِدَ ٱللَّهِ مَنۡ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ

ٱلۡأٓخِرِ وَأَقَامَ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَى ٱلزَّكَوٰةَ وَلَمۡ يَخۡشَ إِلَّا

ٱللَّهَۖ فَعَسَىٰٓ أُوْلَٰٓئِكَ أَن يَكُونُواْ مِنَ ٱلۡمُهۡتَدِينَ



ترجمه : بېشکه همدا خبره ده چې ودانوي (په عبادت ناسته ولاړه په تعمیر سره) مسجدونه د الله ① هغه څوک چې ایمان یې راوړی وي په الله ① او په ورځې د آخرت (قیامت) او قائموي (سم اداء کوي سره د ټولو حقونو) مونځ او ورکوي زکات او نه ډارېږي (په دیني کارونو کې له هېچا) مګر له الله ①څخه نو امید دی چې دغه کسان به وي له سمې لارې موندونکو څینې.

د حضرت عبد الله بن عمر ❼ په یو روایت کې هغه مبارک فرمایي ما د رسول الله ♈ نه واورېدل چې هغه مبارک فرمایل :

(أُمرت أن أُقاتل الناس حتى يشهدوا أن لا إله إلا الله, وأنّ محمدًا رسول الله, ويقيموا الصلاة ويؤتوا الزكاة.) أخرجه البخاري ومسلم.

لكه مخكې چې تېر شول زكات په لغت كې پاكې ته ويل كيږي او همدارنګه نماء او زياتوالي ته هم ويل كيږي او زكات ته ځكه وايي چې پدې سره د انسان د نفس او مال پاكي هم راځي او د زكات د وركولو سره په مال كې زيادت هم راځي زكات په اصطلاح كې دېته وايي چې يو مالدار مسلمان چې مال يې تر معلوم نصاب څخه پورته شوی وي (تفصيل يې راځي ا نشاء الله) او كال وربانډې تېر شي په هغه مال كې څلوېښتمه برخه فقير او محتاج ته وركړي چې هغه فقير سيد (هاشمي) نه وي .

په پورتنيو آيتونو كې متعدد ځله د زكات ذكر تېر شو وركول يې مستحق ته فرض دي الله ① په سورت بقره كې په ٤٣ آيت كې فرمايي :

وَأَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُواْ ٱلزَّكَوٰةَ وَٱرۡكَعُواْ مَعَ ٱلرَّٰكِعِينَ ﴿٤٣﴾

ترجمه: او تاسې قائموئ (په ښه ترتیب سره اداء کوئ) مونځ او ورکوئ زکات او رکوع کوئ سره د رکوع کونکو (مونځ کونکو مسلمانانو)

د هجرت په دوهم کال باندې فرض شوی دی نه ورکونکی یې ګناهګار دی اسلامي حکومت به یې د زکات ورکولو ته مجبور کوي او که یې انکار کولو نو سزا به ورکوله کیږي او که ډېر خلک وي نو اسلامي حکومت به ورسره جنګ کوي ترڅو چې د زکات ورکولو ته غاړه کیږدي او منکر ترېنه کافر کیږي او هغه کسان چې د وجوب عقیده یې لري لکن نه یې ورکوي دوی کافران نه دي .

د زکات د مال چې کله کال پوره شي نو سم د لاسه وربانديې زکات فرض کیږي او که په ورکولو کې یې ځنډ وکوي نو په تاخیر سره ګناهکار کیږي .

# د زکات د فرض کېدلو شرطونه

زکات هغه وخت فرض کیږي چې لاندې شرطونه موجود شي :

١. ازادي

په غلام باندې زکات فرض نه دی اګر که د پیسو مالک وي او اګر که داسې غلام وي چې په تجارت کې ورته اجازه شوې وي .

٢. اسلام

په کافر باندې د زکات وجوب نشته (البدائع)

⇦ نو که په اسلامي ملک کې کافر اوسيږي د زکات په ورکړه به نه مجبورول کيږي .

⇦ هغه څوک چې (نعوذ بالله) مرتد شي او څو کاله په هماغه ارتداد کې پاتې شي نو چې بېرته مسلمان شي دهغه کالونو زکات وربانديې نشته . (معراج الدراية)

⇦ هغه څوک چې د کفارو په ملک کې مسلمان شي او څو کاله د اسلام نه وروسته هم هلته پاتې شي نو چې اوس اسلامي ملک ته راشي نو د زکات په ورکولو به نه مجبور کيږي او که د اسلام نه وروسته د زکات په اړه په مسائلو باندې پوه وو نو ورته وبه ويل شي چې زکات په تا باندې له هغه وخت نه فرض دی چې ته مسلمان شوی وې نو ور يې کړه او که د زکات په اړه يې معلومات نه درلودل او په فرضيت يې نه وو خبر اوس وربانديې دتېر وخت زکات ورکول فرض نه دي

⇦ که ذمي کافر (هغه کافر چې په اجازه سره د مسلمانانو په ملک کې اوسيږي) هغه چې مسلمان شي نو د اسلام د وخت نه په ده باندې زکات واجبيږي دی چې څرنګه په اسلامي ملک کې اوسيږي نو دده په حق کې نه پوهېدل دليل نشي کېدلی .

۳. عقل

⇦ په لېوني باندې زکات نشته اګر که مال ولري .

⇦ دا هغه لېونى وي چې ټول کال لېونى وي . (الجوهرة النيرة)

⇦ او که د لېوني په مِلک کې د مال د راتلو نه وروسته د کال په کومه برخه کې دی جوړ شي که لږ وخت او که ډېر وخت وو نو دده د مال نه به زکات اخستل کيږي . (العيني شرح الهداية)

⇦ دا دهغه لېونتوب خبره ده چې د بلوغ نه وروسته ورته عارض شوى وي او که د بلوغ د شروع نه څوک لېونى وي او بيا جوړ شي نو د جوړېدو د وخت نه يې د کال حساب شروع کيږي چې کله يو کال ورباندې تېر شو زکات ورباندې فرض کيږي ( الکافي)

٤. بلوغ.

⇦ په ماشوم باندې زکات فرض نه دی اګر که دده په ملکيت کې مال وي .

⇦ ماشوم چې کله بلوغ ته ورسيږي نو بيا ورباندې زکات واجب کيږي لکن دده د بلوغ د وخت نه به د کال حساب شروع کيږي چې کله يې يو کال پوره شو نو اوس ورباندې زکات فرض شو .

٥. مال به نصاب ته رسېدلى وي.

⇦ ترڅو چې مال د نصاب حد ته نه وي رسېدلى ترڅو ورباندې زکات نشته (تفصيل به يې راشي انشاء الله)

٦. په مال باندې پوره واک وي .

- يعني د كوم مال نه چې زكات وركول كيږي هغه به دده پوره تر اختيار لاندې وي يعنې د بل چا سره به شريک نه وي او نه به پكې د بل چا ملک وي او دى به په هغه كې هروخت تصرف كولى شي .
- په هغه مال كې زكات نشته چې چا پداسې ځاى كې ايښى وي چې اوس هغه ځاى له ده څه ورک وي او دى يې نشي پيدا كولى.
- كه د ښځې مهر وي لكن تر اوسه پورې د خاوند سره وي او دېته يې وركړى نه وي په هغه كې هم زكات نشته .
- په هغه مال كې هم زكات نشته چې پداسې چا باندې قرض وي چې د هغه د وركولو وس نه وي او كله چې دا مالونه خپل مالک ته ورسيږي نو صرف د يو كال زكات به وركوي .
- كه چا څه مال چاته د څه پيسو په بدل كې گانه كړى وو ترڅو چې دا مال دهغه كس په گرو كې دى په مالک يې زكات نشته. (البحر الرائق)
- هغه كس چې مال په يوځاى كې پرېږدي او دهغې په ساتنه باندې څوک مقرر كړي نو چې دى په سفر باندې وي پدې وخت كې هم په ده باندې دهغه مال زكات وركول فرض دي چې ده پرېښى دى ځكه كه اوس هم دى وغواړي د چا په واسطه په هغه كې تصرف كولى شي ، څوک مامور كولى شي چې په هغه كې تصرف وكوي.

۷. دا مال به د ضروریاتو نه زیات وي.

⇦ او که دا مال داسې مال وو چې دده له ضروریاتو څخه زیات نه وو نو په ده باندې یې زکات نشته لکه د هستوګنې ځای ، د ځان جامه، د کور سامان، د خپلې سپرلی د پاره استعمالېدونکي حیوانات، د خدمت غلامان، د خپل استعمال سلاح، همدارنګه په کور کې د قیمتي کانو څخه جوړ شوي لوښي ترڅو چې د تجارت لپاره نه وي زکات ورباندې نه فرض کیږي. (العیني شرح الهدایة)

⇦ همدارنګه که د کسب آلات وي یا د عالم سره کتابونه وي چې هر څو زیات شي زکات ورباندې نه فرض کیږي. (السراج الوهاج)

۸. د قرض نشت والی.

⇦ ترڅو چې په چا باندې قرض وي نو زکات ورباندې نه فرض کیږي .

⇦ په چا باندې چې قرض وي او دهغه قرض څوک غوښتونکی وي چې په ده باندې د کوم شي د اخستلو، د کوم شي د نقصان یا بل شي له امله په ده باندې راغلی وي ترڅو چې هغه قرض دده په ذمه وي او دی یې په خلاصول قادر نه وي په ده باندې زکات نه فرض کیږي . (عالمګیري)

⇦ او که داسې قرض ورباندې وي چې دده نه یې غوښتنه نه کیږي نو دا زکات نه منع کوي د مثال په ډول لکه په یو سړي باندې د خپلې

ښځې قرض باندې وي او په عادت کې داسې ده چې هغه دده څخه خپل قرض نه غواړي نو پدې صورت کې په ده باندې زکات ورکول فرض دي او که دده ښځې هم له ده څخه د خپل قرض مطالبه کوله لکن ده ورته قرض نشواى اداء کولى نو پدې صورت کې بيا ورباندې زکات نه فرض کيږي ترڅو هغه قرض خلاص نه کړي.

⇦ همدارنګه که د ښځې مهر ورباندې وو او د ورکولو وس يې نه وي نو ترڅو يې چې هغه نه وي ور خلاص کړى زکات ورباندې نه فرض کيږي. (محيط السرخسي)

۹. په مال باندې د کال تېريدل

⇦ مخکې تېر شول چې مال د نصاب سره برابر او يا ورڅخه زيات شي نو زکات پرې فرض کيږي لکن دا زيادت به يوه مياشت دوه مياشتې نه وي بلکه چې پدې باندې پوره کال تېر شي بيا ورباندې زکات فرض کيږي.

⇦ د زکات په حساب کې د کال نه مراد قمري کال وي کله چې قمري کال ورباندې تېر شي نو زکات فرض کيږي. (القنية، عالمګيري)

⇦ که د کال په ځينې برخه کې مال تر نصاب رسېدلى او يا ترې زيات وو لکن ټول کال همداسې پاتې نشو بيا ورباندې زکات نشته.

⇦ که د کال په سر کې تر نصاب زيات يا ورسره برابر وو او د کال په مينځ کې د حالاتو د څه بدلونونو له امله تر نصاب نه کم شو لکن د

کال په آخر کې بېرته نصاب ته رسېدلی وو نو زکات وربانديې فرض دی. (الهداية)

- که د کال په دوران کې مال په بل مال بانديې بدل را بدل شو د سر نه ورته د کال د حساب کولو ضرورت نشته دا هم حولان د حول نه بندوي . (محيط السرخسي)
- که د کال په دوران کې مال زيات شو يا موجوده مال ګټه وکوله او يا د بلې خوا نه همداسې مال ورته راغلو چې کوم دده سره وو يو جنس وو نو دا به هم ورسره يو ځای کړي چې د اولني مال کال پوره شي نو د ټول مال زکات به ورکړي او که ددې نوي مال جنس بدل وو بيا به دا بېل حساب کړي او د کومې ورځې نه چې ورته راغلی دی د هغه ورځې نه به ددې د کال حساب وساتي دمثال په توګه پخوانی مال اوښان وو اوس پسونه راغلل نو دا به بېل وساتي او ددې لپاره به د بېل کال شروع حساب کړي.
- زکات ورکول هغه وخت صحيح کيږي چې يا خو يې فقير ته د ورکولو په وخت کې نيت وکوي او يا يې د ټول مال څخه د را بېلولو په وخت کې دا نيت وکوي چې دا مال به په زکات کې ورکوم (عالمګيري)
- که د ورکولو او يا د بېلولو په وخت کې يې نيت ونه کولو دا پيسې يې ټولې خيرات دي د زکات په ځای نه دريږي (التبيين)

⇦ او نیت یې دومره کفایت کوي چې د پیسو ورکولو په وخت کې له ده څخه پوښتنه وشي چې دا پیسې ولې ورکوې؟ که ده فوراً ځواب ورکولی شو نو چې دا زکات ورکوم نو بیا صحیح دی او که فوراً یې ځواب نشوای ورکولی نو بیا نه ده صحیح. (عالمګیري)

⇦ او که یې پیسې بېلې او معلومې نه کړې همداسې یې نیت وکولو چې د کال تر آخره پورې څه پیسې ورکوم دا د زکات په نیت ورکوم نو بیا هم نه ده صحیح ترڅو چې مبلغ معلوم نه کړي او یا یې د ورکولو په وخت کې نیت ورسره یوځای نه کړي. (السراجیة)

⇦ که د خپل زکات د تقسیم لپاره یې وکیل ونیولو نو چې کله یې هغه ته د زکات پیسې سپارلې په هغه وخت کې یې نیت وو نو دا نیت هم ورته کفایت کوي (محیط السرخسي)

⇦ که یو غریب ته یې پیسې ورکړې د ورکولو په وخت کې یې د زکات نیت ورته نه وو کړی اود ورکولو نه وروسته یې وویل چې دا دې په زکات کې وي نو که هغه پیسې د هغه غریب په لاس کې وي هغه لا مصرف کړې نه وې نو نیت یې اوس هم صحیح دی او که پیسې دهغه په لاس کې نه وې نو بیا یې نیت نه صحیح کیږي او د زکات په ځای نه دریږي. ( معراج الدرایة، العین شرح الهدایة)

⇦ همدارنګه که له چا سره د بل چا مال وو دهغه د مال نه يې بغير د مالک د اجازې نه زکات ورکړو اوس مالک خبر شو هغه وويل چې ښه دې کړي دي نو که تر اوسه پورې مال د غريب په لاس کې وو زکات صحيح دى او که هغه مال د غريب له لاس نه وتلى وو نو اوس زکات صحيح نه دى (السراجية)

⇦ که په چا باندې زکات فرض شو ددې په ځاى چې زکات ورکړي هغه خپل ټول مال په خيرات کې ورکړو زکات ترېنه ساقط شو اوس وربانديې نه دى فرض (عالمګيري)

⇦ که په غريب سړي يې قرض وو هغه ته يې قرض پدې نيت معاف کړو چې دده زکات وربانديې خلاص شي نو د زکات ځاى نه نيسي صرف دهغه پيسو د زکات نه خلاصيږي چې کومې يې غريب ته معاف کړې او همدارنګه که د قرض ځينې برخه يې ورته معاف کړه نو چې کوم يې ورته معاف کړو دهغه مال د زکات د برخې نه خلاص شو. (التبيين)

⇦ او که دا کس چې قرض وربانديې وو مالدار وو ددې مستحق نه وو چې زکات ورکړل شي نو په پيسو باندې د کال تېرېدلو نه وروسته ده هغه قرض همدې مالدار سړي ته چې قرض وربانديې دى معاف کړې نو ددې پيسو زکات به دى ورکوي پده باندې فرض شوى دى.

( محيط السرخسي)

⇦ که په چا باندې یې قرض وو بیا یې فقیر ور ولیږلو چې ورشه له هغه کس نه زما قرض واخله او پدې سره یې د زکات نیت وکولو نوچې هغه فقیر دده قرض له بل کس نه را واخستلو نو دده غاړه د زکات نه پرې خلاصه شوه. (البحر الرائق)

⇦ هغه څوک چې زکات ورکوي نو که په ښکاره سره یې ورکړي نو ښه خبره ده او نفلي عبادتونه چې په پټه سره وشي نو ښه خبره ده (فتاوی قاضي خان)

⇦ که یو مسکین ته یې د تحفې یا خیرات په نامه څه مال ورکړو او نیت یې پکې د زکات وکولو نو صحیح ده. ( البحر الرائق)

# د څرېدونکو مالونو زکات

⇦ په څرېدونکو مالونو کې په هغه مالونو کې زکات وي چې د کور نه بهر څریږي او د شودو یا د سپرېدنې لپاره نه بلکه د تجارت او ګټې په موخه ساتل شوي وي او ددې لپاره ساتل شوي وي چې توالد او تناسل وکوي او زیات شي او یا یې په قېمت کې زیادت راشي او بیا وربانديې تجارت وکول شي نو پدې حیواناتو کې زکات شته او د زکات طریقه یې لکه د روپیو

په څېر داسې هم نه ده چې ټول په یو شان وي لکه مخکې مو چې تېر کړل چې په مال کې څلویښتمه برخه زکات فرض دی بلکه مختلفه ده .

⇦ په پورته یاد کړل شویو حیواناتو کې که ټول مذکر حیوانات وي او یا ټول مونث حیوانات وي او یا دواړه سره شریک وي په هر صورت پکې زکات شته.

# د اوښانو زکات

⇦ اوښان چې تر پنځو کم وي زكات پكې نشته (الهداية)
⇦ چې تر پنځه ويشتو كم وي نو د هرو پنځو اوښانو په سر يو پسه وركول فرض دي (العيني شرح الكنز)
⇦ پسه (ګډ) هغه معتبر دی چې يوكلن او يا تردې څخه هم زيات وي.
⇦ اوښان چې كله پنځه ويشت شي نو بيا پكې يوه بنت مخاض ده دا هغه اوښه وي چې په دوه كلنۍ كې وي يعني يو كال يې پوره شوی وي اوس په دوهم كال كې وي.
⇦ بيا تر پنځه دېرشو پورې همدا زكات دی يعني كه اوه ويشت آته ويشت او يا ۳۵ وي نو بيا هم همدا د پنځه ويشتو حكم دی .
⇦ چې كله شپږ دېرش ۳٦ شي بيا پكې يوه بنت لبون ده دا هغه اوښه وي چې دوه كلونه يې پوره شوي وي او اوس په دريم كال كې وي .
⇦ تر څلور څلوېښتو پورې بيا همدا حكم دی .
⇦ كله چې اوښان پنځه څلوېښت شي بيا پكې يوه حقه ده دا هغه ا وښه وي چې درې كلونه يې پوره شوې وي او اوس په څلورم كال كې وي.
⇦ تر شپېتو اوښانو پورې بيا همدا حكم دی .

⇦ کله چې اوښان ٦١ شي بیا پکې یوه جذعه ده دا هغه وي چې په پنځم کال کې وي بیا تر پنځه اویا اوښانو پورې همدا حکم دی.
⇦ کله چې اوښان ٧٦ شي بیا پکې دوه بنت لبون دي تر نوي (٩٠) پورې .
کله چې اوښان ٩١ شي نو بیا پکې دوه حقې دي (دری کلنې) تر یوسل شلو پورې (الهدایة)
⇦ بیا تر یو سل شلو چې پنځه اوښان زیاتیږي د هرو پنځو اوښانو په سر باندې یو پسه (ګډه) دی چې د همدې دوه حِقو سره به یو ځای کیږي تر ١٤٤ پورې .
⇦ کله چې اوښان ١٤٥ شي بیا پکې دوه حقې او یوه جذعه ده تر ١٤٩ پورې.
⇦ کله چې اوښان ١٥٠ شي نو بیا پکې دری حقې دي .
⇦ بیا تر ١٧٤ پورې د هرو پنځو په سر باندې یو پسه دی چې د دریو حقو سره به ورکول کیږي کله چې ١٧٥ شي نو بیا به دری حقې او یوه بنت مخاض ورکوي تر ١٨٥ پورې .
⇦ کله چې اوښان ١٨٦ شي بیا دری حقې او یوه بنت لبون ده تر ١٩٥ پورې .
⇦ کله چې اوښان ١٩٦ شي بیا تر ١٩٩ پورې څلور حِقې دي .
⇦ کله چې اوښان دوه سوه شي بیا یې که خوښه وه د هرو پنځوسو په سر دې یوه حقه ورکړي یعني

څلور حقې او یا د هرو څلوېښتو په سر یوه بنت لبون ورکړي یعني پنځه بنت لبون (فتاوی قاضي خان)

- بیا چې تر دوو سوو نه زیاتیږي له سر نه به حساب ورته شروع کوي یعني د هرو پنځو په سر به یو پسه (ګډ) ورکوي لکه د یو نیم سلو نه وروسته چې له سر نه شوې وه.
- په اوښانو کې چې په کومو باندې زکات فرض کیږي هغه لږ تر لږه بنت مخاض دي. (شرح الطحاوي)
- د اوښانو په شمېره کې به وړوکي او معیوب هم حسابول کیږي لکن په زکات کې به نه قبلول کیږي همدارنګه په زکات کې به هغه اوښه هم نه اخستله کیږي چې په هغې پسې واړه اوښان وي چې هغه یې پالنه او ساتنه کوي همدارنګه حامله اوښه به هم په زکات کې نه اخستله کیږي. (محیط السرخسي)

لنډیز

نکته : بنت مخاض (هغه اوښه چې په دوهم کال کې وي)

- بنت لبون (هغه اوښه چې په دریم کال کې وي)
- حقه (هغه اوښه چې په څلورم کال کې وي)
- جذعة ( هغه اوښه چې پ پنځم کال کې وي)

| اوښان | زکات |
|---|---|

| | |
|---|---|
| ٥<br>اوښان | یو پسه (ګډ) |
| ١٠ | دوه پسونه |
| ١٥ | درې پسونه |
| ٢٠ | څلور پسونه |
| ٢٥ | بنت مخاض |
| ٣٦ | بنت لبون |
| ٤٦ | حقه |
| ٦١ | جذعة |
| ٧٦ | دوه بنت لبون |
| ٩١ | دوه حقې |
| ١٢٥ | دوه حقې یو پسه (ګډ) |
| ١٣٠ | دوه حقې دوه پسونه |
| ١٣٥ | دوه حقې درې پسونه |
| ١٤٠ | دوه حقې څلور پسونه |
| ١٤٥ | دوه حقې یوه بنت مخاض |
| ١٥٠ | درې حقې |
| ١٥٥ | درې حقې یو پسه |
| ١٦٠ | درې حقې دوه پسونه |
| ١٦٥ | درې حقې درې پسونه |
| ١٦٥ | درې حقې څلور پسونه |
| ١٧٠ | درې حقې پنځه پسونه |
| ١٧٥ | درې حقې یوه بنت مخاض |
| ١٨٦ | درې حقې یوه بنت لبون |
| ١٩٦ | څلور حقې |

# د غوايانو زكات

- غواوې او غوايان چې تر دېرشو څخه کم وي زكات پكې نشته كله چې دېرشو ته ورسيږي بيا پكې يو دوه كلن غوايى او يا دوه كلنه غوا وركول فرض كيږي . (الهداية)
- تر ۳۹ پورې پكې همدا يو دوه كلنه غوا او يا دوه كلن غوايى دى لكن چې كله څلوېښت شي نو بيا پكې درى كلن غوايى او يا درى كلنه غوا وركول فرض دي.
- كله چې ٦٠ شي نو بيا پكې دوه دوه كلن وركول فرض شي كه مذكر وي او كه مونث وي .
- تر شپېتو وروسته چې كله هم دېرش زياتيږي نو يودوه كلن او چې كله څلوېښت زياتيږي نو يو درى كلن وركول فرض كيږي يعني چې كله اويا ۷۰ شي يو به دوه كلن او يو به درى كلن وركول كيږي چې كله اتيا ۸۰ شي نو دوه درى كلن او چې كله ۹۰ شي نو درى دوه كلن به وركول كيږي. (شرح الطحاوي)
- كه په كوم صورت كې دوه كلن او درى كلن دواړه وركول صحيح كېدل نو بيا د وركونكي خوښه چې كوم يو غوره كوي د مثال په ډول كله چې ۱۲۰ غوايان شول كه يې خوښه وه درى كلن دې وركړي او يا دې څلور دوه كلن وركړي. (التبيين)

⇦ ګامېښ په حکم د غوايي کې دی که دواړه موجود وو نو دواړه به سره يو ځای کړي ترڅو چې دېرش پوره شي نو بيا به وکتل شي که هر ذات پکې ډېر وو نو دهغه نه به زکات واخستل شي او که کوم يو پکې زيات او کم نه وو نو بيا به د غوايانو له جملې نه ښه او د ګامېښانو له ډلې نه کمزوری اخستل کيږي.

⇦ که په غوايانو کې مذکر زيات وو نو مذکر زکات ورکول غوره دي او که مونث زيات وو مونث ورکول غوره دي . (التتارخانية)

⇦ غوايان چې تر دوه کلنو کم وي په هغو کې زکات نشته. (شرح الطحاوي)



| د مـال تـعداد | زکـات |
|---|---|
| ۳۰ غوایـان | یـو تـبـیـع یـا یـوه تـبـیـعـة |
| ٤۰ | یـو مـسن یـا مـسنـة |
| ٦۰ | دوه تـبـیـع / تـبـیـعـة (دوه کـلـن) |
| ۷۰ | یـو دوه کـلـن یـو دری کـلـن |
| ۸۰ | دوه مـسن/مـسنـة (دری کـلـن) |
| ۹۰ | دری تـبـیـع/تـبـیـعـة (دوه کـلـن) |
| ۱۰۰ | یـو مـسن/مـسنـة (دری کـلـن) دوه تـبـیـع/تـبـیـعـة |
| ۱۲۰ | یـا دری مـسن/مـسنـة یـا څـلـور تـبـیـع/تـبـیـعـة |
| | |



# د پسونو (ګډانو) زکات

⇦ پسونه چې تر ٤٠ کم وي زکات پکې نشته چې تر څلوېښتو پورې ورسيږي او کال ورباندې تېر شي نو په هغې کې يو پسه دی تر ١٢٠ پورې .

⇦ کله چې ١٢١ شول نو بيا پکې دوه پسونه دي تر ٢٠٠ پورې .

⇦ چې له دوو سوو څخه يو هم زيات شو نو بيا پکې تر ٤٠٠ پورې څلور پسونه دي .

⇦ بيا چې تردې زياتيږي د هرو سلو په سر باندې يو پسه دی چې څومره زياتيږي .

لنډيز

| د پسونو تعداد | زکات |
|---|---|
| ٤٠ | ١ پسه (ګډه) |
| ١٢١ | ٢ |
| ٢٠١ | ٣ |
| ٤٠٠ | ٤ |
| ٥٠٠ | ٥ |
| ٦٠٠ | ٦ |

⇦ هغه آسونه چې د تجارت لپاره نه وي زکات پکې نشته او که د تجارت لپاره وي چې د پيسو په حساب کې يې مقدار د زکات نصاب ته ورسيږي نو بيا زکات ورباندې لازميږي که هغه په دښتو کې

ځريږي او که په کور کې واښه ورکول کيږي. (المضمرات)

⇦ په ځونګيانو په بيانونو (وړو آسونو) وړو خوسيو کې زکات نشته .

⇦ خره ، قچر ، تربيه کړل شوي سپي چې د تجارت لپاره وي چې مقدار يې په قېمت کې د زکات نصاب ته ورسيږي نو بيا زکات پکې شته .(السراجية) .

# د سرو او سپينو زرو او روپيو زکات

⇦ په سرو زرو ، سپينو زرو، افغانيو، پاکستانيو روپيو، ريالونو، ډالرو او ټولو مستعملو روپيو که د کاغذ وي، که د سرو زرو وي ، که د سپينو زرو وي چې د کوم شي د اخستلو او يا د چا د کار په بدل کې د مزدوري په ډول ورکول کېدلی شي په ټولو کې زکات شته.

پدې کې څو بحثونه دي:

**اول بحث فرضيت يې:**

⇦ په سرو او سپينو زرو کې د زکات د فرضيت دليل:

⇦ په سرو او سپينو زرو کې زکات ورکول په کتاب الله ، سنت او اجماع سره فرض دی.

په قران کريم کې الله ① فرمايي :
سورت التوبة آية ٣٤ - ٣٥
**وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ الله فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ* يَوْمَ يُحْمَى عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ هَذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنْفُسِكُمْ فَذُوقُوا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُونَ.**

ترجمه : او هغه کسان چې خزانه کوي سره زر او سپين زر او نه لګوي هغه په لاره د الله ① کې (د دين د ترقي لپاره) نو زيرى ورکړه دوى ته په عذاب دردناک سره په هغې ورځې چې سختې سرې به کړل شي دغه خزانې په اور د جهنم (دوزخ) کې نو داغلى به شي په هغه سره وچولي (تندي) د دوى او اړخونه د دوى او شاګانې د دوى او ويل کيږي به ورته دا هغه شى دي چې خزانه کړي وو تاسې د پاره د نفسونو (ځانونو) خپلو نو وڅکئ تاسې (خوند د سزا د) هغه (مال) چې تاسې به خزانه کاوه په دنيا کې.
په پورتني آيت کې چې کوم عذاب ياد کړل شوى دى حضرت امام ابن قدامة رحمه الله فرمايي دا ډول وعيد هغه چا ته ورکول کيږي چې د واجبو ترک وکوي (المغني جلد څلرم صفحه ٢٠٨)
الله ① په بل ځاى کې فرمايي :
سورة آل عمران آية ١٨٠

وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ يَبْخَلُونَ بِمَا آَتَاهُمُ اللهُ مِنْ فَضْلِهِ هُوَ خَيْرًا لَهُمْ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَهُمْ سَيُطَوَّقُونَ مَا بَخِلُوا بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلِلَّهِ مِيرَاثُ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاللهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ

ترجمه : او ګمان د نه کوي له سره هغه کسان چې بخيلي کوي دوى په هغه شي چې ورکړي دي دوى ته الله ① له فضله خپله چې دا بخل خير دى (غوره دى) بلکه دا (بخل ډير بد) شر دى دوى ته ، ژر به په غاړه کې ورته امېل کړل شي هغه چې بخيلي کړيده دوى په هغه کې په ورځې د قيامت او خاص الله ① لره دى ميراث د اسمانونو او زمکې او الله ① په هغه کارونو چې کوئ يې تاسې ښه خبردار دى.

د حضرت ابي هريره ❼ په حديث کې رسول الله ♈ فرمايي :

ما من صاحب ذهب ولا فضةلا يؤدي منها حقها، إلا إذا كان يوم القيامة صُفِّحت له صفائح من نار فأحمي عليها في نار جهنم، فيكوى بها جنبه، وجبينه، وظهره، كلما بردت أعيدت له في يوم كان مقداره خمسين ألف سنة، حتى يقضى بين العباد فيرى سبيله إما إلى الجنة وإما إلى النار. متفق عليه .

ترجمه : هغه څوک چې د سرو او سپينو زرو مالک وي په د نيا کې د الله ① حق (زکات) تړينه ورنه کړي نو په قيامت کې به الله ① ورته تختې ترې

جوړې کړي او د دوزخ په اور به يې ګرمې کړي بيا به د مالک څنګ ، تندی او شا وربانديې داغ کړي چې کله دا تختې يخې شي بيا به ورته ګرمې کړل شي او په هغه ورځ چې اندازه يې پنځوس زره کاله وي همدا کار به ورسره کيږي تردې چې حساب ختم شي څوک چې جهنم ته د تلو وي هغوی به جهنم ته او څوک چې جنت ته د تلو وي هغوی به جنت ته لاړ شي.

او پدې باندې اجماع هم ده چې په سرو او سپينو باندې زکات واجب دی حضرت ابن المنذر رحمه الله فرمايي : ټولو علماوو پدې خبره اجماع کړيده چې په دوه سوه درهمو کې پنځه درهمه دي او هغه سره زر چې شلو مثقالونو ته ورسيږي نيم مثقال يې زکات دی .

**دوهم بحث نصاب يې :**

## د سپينو زرو نصاب

⇦ سپين زر چې کله دوه سوه درهمه ته ورسيږي نو زکات وربانديې فرض کيږي حضرت علي ❼ فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل :

**قد عفوت عن الخيل والرقيق، فهاتوا صدقة الرقة من كل أربعين درهماً درهماً، وليس في تسعين ومائة شيء، فإذا بلغت مائتين ففيها خمسة دراهم**

په بل حديث کې حضرت علي ❼ فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل :

**فإذا كانت لك مائتا درهم وحال عليها الحول ففيها خمسة دراهم**

⇦ ددې دليلونو نه ښکاره کيږي چې د سپينو زرو نصاب دوه سوه درهمه دی دا درهمونه هغه درهمونه دي چې لس دانې سره يو ځای کړل شي اوه مثقاله وزن ترېنه جوړيږي او هر درهم د مثقال د پنځمې برخې د پاسه نيم درهم وي او همدا هغه اسلامي درهمونه د ي چې په شرعي مسئلو کې ياديږي لکه د زکات په نصاب کې، د غلا په صورت کې د لاس د پرې کولو په صورت کې ، د جزيې د تعين لپاره او داسې نور ....

⇦ پدې موضوع کې د تفصيل لپاره امام مرداوي رحمه الله فرمايي : چې ۷۲ مينځنی وربشې سره را ټولې کړل شي يو مثقال جوړوي . (الانصاف في معرفة الراجح من الخلاف)

⇦ نو که ۷۲ مينځنی وربشې اوس را ټولې کړل شي او و تلل شي نو دا 4.6 ګرامه وزن جوړوي او دوه سوه درهمه ۱٤٠ مثقاله کيږي نو X 4.6 140 = 644 نو په ګرامونو سره تقريباً دا د سپينو زرو کيږي او همدې وزن ته ويل کيږي چې وزن خمسة اواق او د همدې وزن سپينو زرو څخه دوه سوه د رهمه جوړيږي که تردې نه

له چا سره کم وو نو زکات وربانديڊ نشته مګر که سپين زر ورسره ددېنه کم وو لکن نور د تجارت مال ورسره وو چې هغه ورسره ضم کړل شي نصاب ته رسيږي نو بيا وربانديڊ زکات فرض کيږي.

⇦ حضرت ابن قدامة رحمه الله فرمايي د تجارت مالونه د سرو او سپينو زرو دواړو سره يو ځای کيږي ترڅو نصاب پرې پوره شي او پدې اړه مونږ ته کوم اختلاف نه دی معلوم.

⇦ حضرت خطابي رحمه الله فرمايي کله چې يوازې سره زر او يا سپين زر د زکات نصاب نشي پوره کولی نو د تجارت مالونه هم ورسره يو ځای کېدلی شي او دوی هم په خپل مينځ کې يو له بل سره يو ځای کېدلی شي ترڅو نصاب پوره کړي.

# د سرو زرو نصاب

⇦ سره زر چې کله شلو دينارونو او شلو مثقالونو ته ورسيږي او کال پرې تېر شي نو زکات وربانديڊ فرض دی اوس به نيم مثقال (ځلويښتمه برخه) ورکوي.

حضرت علي ❼ فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل:

**فإذا كانت لك مائتا درهم وحال عليها الحول ففيها خمسة دراهم، وليس عليك شيء، - يعني في الذهب – حتى يكون**

**لك عشرون ديناراً، فإذا كان لك عشرون ديناراً؛ وحال عليها الحول ففيها نصف دينار، فما زاد فبحساب ذلك، وليس في مال زكاة حتى يحول عليه الحول.**

ترجمه : کله چې ستا سره دوه سوه درهمه وي او کال وربانديې تېر شي نو پنځه درهمه يې په زکات کې ورکول فرض دي په سرو زرو کې په تا باندې څه نشته تردې چې هغه شل دېناره شي کله چې شل دېناره شول او کال وربانديې تېر شو نو نيم دينار (څلوېښتمه برخه) به پکې ورکړې او تردې چې زياتيږي نو په همدې حساب به يې زکات ورکول کيږي په مال کې تر هغه وخته پورې زکات نشته چې ترڅو وربانديې کال آوښتی نه وي.

⇦ د حضرت امام حسن بصري رحمه الله نه بغير د ټولو علماوو پدې اجماع ده چې سره زر شلو مثقالونو ته ورسيږي زکات وربانديې فرض کيږي.

⇦ لکه مخکې مو چې تېر کړل يو مثقال 4.6 گرامه جوړيږي او 4.6 X 20 = 92 نو دا تقريباً ۹۲ گرامه شول چې دديېنه تقريباً څه د پاسه اوه نيمې تولې جوړيږي نو ددې وجې نه زمونږ علماء وايي چې د سرو زرو زکات اوه نيمې تولې کيږي.

⇦ سره او سپين زر چې د نصاب حد ته ورسيږي چې په هر صورت کې وي زکات وربانديې واجبيږي لکه په هدايه کې چې فرمايي :

وفي تبر الذهب والفضة وحليهما وأوانيهما زكاة . (الهداية)

ترجمه : د سرو او سپينو زرو په ټوټه کې يا په زيوراتو او لوښو کې زکات فرض دی.

⇦ نو په هغه زيوراتو کې چې زنانه يې آغوندي او استعمالوي يې هم زکات فرض دی که د پورتني ياد کړل شوي نصاب سره برابر شي او يا ترېنه زيات شي په هر کال کې به يې څلوېښتمه برخه يا دهغې مساوي پيسې په زکات کې ورکوي او که د نصاب نه کم شي نو بيا وربانديې زکات نشته .

⇦ ځينې خلک وايي چې هغه زيورات چې ښځې يې استعمالوي زکات پکې نشته پدې اړه يو څو دليلونو ته ستاسې فام را ګرځوم چې د هغې نه دا ثابتيږي چې د زنانه په زيوراتو کې زکات شته .

**لمړی دليل :**

الله ① فرمايي لکه مخکې چې تېر شول :

سورت التوبة آية ٣٤- ٣٥

وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُونَهَا فِي سَبِيلِ الله فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ* يَوْمَ يُحْمَى عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوبُهُمْ وَظُهُورُهُمْ هَذَا مَا كَنَزْتُمْ لِأَنْفُسِكُمْ فَذُوقُوا مَا كُنْتُمْ تَكْنِزُونَ

ترجمه : او هغه کسان چې خزانه کوي سره زر او سپین زر او نه لګوي هغه په لاره د الله ① کې (د دین د ترقي لپاره) نو زیری ورکړه دوی ته په عذاب دردناک سره په هغې ورځې چې سختې سرې به کړل شي دغه خزانې په اور د جهنم (دوزخ) کې نو داغلی به شي په هغه سره وچولي (تندي) د دوی او اړخونه د دوی او شاګانې د دوی او ویل کیږي به ورته دا هغه شی دي چې خزانه کړي وو تاسې د پاره د نفسونو (ځانونو) خپلو نو وڅکئ تاسې (خوند د سزا د) هغه (مال) چې تاسې به خزانه کاوه په دنیا کې.

⇦ په پورتني آیت کې د سپینو اوسرو زرو تقسیم نه دی شوی بلکه په عامه توګه هر سپین او سره زر یاد کړل شوي نو پدې کې هغه سره او سپین زر هم داخل دي چې زنانه یې د زیور په توګه استعمالوي .

**دوهم دلیل:**

د صحیح مسلم په حدیث کې رسول الله ♈ فرمایي : هغه څوک چې د سرو او سپینو زرو مالک وي په د نیا کې د الله ① حق (زکات) تر ېنه ورنه کړي نو په قیامت کې به الله ① ورته تختې ترې جوړې کړي او د دوزخ په اور به یې ګرمې کړي بیا به د مالک څنګ ، تندی او شا وربانديې داغ کړي چې کله دا تختې یخې شي بیا به ورته ګرمې کړل شي او په هغه ورځ چې اندازه یې پنځوس زره کاله

وي همدا كار به ورسره كيږي تردي چې حساب ختم شي څوك چې جهنم ته د تلو وي هغوی به جهنم ته او څوك چې جنت ته د تلو وي هغوی به جنت ته لاړ شي.

⇦ ددې حديث په تفسير كې اجماع ده چې هر سره او هر سپين مراد دي ځكه رسول الله ﷺ چې كله هغه كسانو ته وعيد وركول چې زكات نه وركوي نو د سرو او سپينو زرو په مينځ كې يې تقسيم نه دى كړى.

⇦ **دريم دليل :**

د ابي داود، النسائي، احمد او ترمذي په حديث كې دي :

د حضرت عبد الله بن عمر بن العاص رضي الله عنه نه روايت دى رسول الله ﷺ ته يوه ښځه راغله چې يوه لور يې ورسره وه او د لور په لاس كې يې دوې د سرو زرو سختې كړې وې رسول الله ﷺ ورته وويل ته ددې زكات وركوې؟ هغې مباركې ورته وويل : نه رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې ته دا خوښوي چې الله ددې په ځاى درته د اور دوه كړې د قيامت په ورځ درته واچوي؟ حضرت عمرو ابن العاص رضي الله عنه فرمايي بيا هغې مباركې هغه دواړه كړې رسول الله ﷺ ته ور واچولې او ورته يې وويل دا د الله ① او دهغه د رسول وي .

پدې حديث کې هغې ښځې ته سخت وعيد ورکړل شوی دی چې دا ددې زکات نه ورکوي او دا هغه څه وو چې د ښځې د زيور برخه وه .

⇦ **څلروم دليل :**

د ابي داود ، دار قطني، او بيهقي په حديث کې د عبد الله بن شداد بن الهاد نه روايت دی هغه فرمايي مونږ ته حضرت عائشې رضی الله عنها و فرمايل يوه ورځ رسول الله ﷺ زما کوټې ته را ننوتلو زما په لاس کې يې دوې ګوتمې ولېدې چې د سپينو زرو وې را څخه يې پوښتنه وکوله : عائشې دا څه شی دي؟ ما ورته وويل دا ما جوړې کړې دي ستاسې لپاره پرې ځان ښائسته کوم . رسول الله ﷺ راڅخه پوښتنه وکوله : ته ددې زکات ورکوې؟ ما ورته وويل نه .. بيا رسول الله ﷺ را ته وويل : ستا د اور نه همدا برخه بس ده .

پدې حديث کې رسول الله ﷺ حضرت عائشې رضی الله عنها ته د هغې د دوو ګوتمو د زکات د نه ورکولو په اړه وعيد ورکړی دی .

د صحابه کرامو عمل هم پدې وو چې هغوی به د زنانه د زيوراتو نه زکات ورکول لازم ګڼل يو څو مثالونه يې ستاسې په وړاندې ايږدم .

⇦ لمړی مثال :

حضرت عمر بن الخطاب ❼ حضرت موسى الاشعري ❼ ته په يو ليک کې ليکلي وو :

(أن مرَّ من قبلك من نساء المسلمين أن يصدقن من حليهنَّ)

(البيهقي في سنن ا لكبرى)

ترجمه : د مسلمانانو ښځو ته حکم وکوه چې هغوی د خپلو زيوراتو زکات ورکړي.

⇦ دوهم مثال :

د عبد الله ابن عباس نه نقل شوي دي چې هغه د زنانه وو په زيوراتو کې زکات لازم کړی وو. ( ذكره ابن الحجر في التلخيص الجبير)

⇦ دريم مثال :

د حضرت عبد الله بن مسعود ❼ نه يې خپلې مېرمن د خپلو زيوراتو په هکله پوښتنه وکوله ده ورته وفرمايل :

(إذا بلغ مائتي درهم ففيه الزكاة) (مجمع الزوائد، السنن الكبرى)

يعني چې دوو سوو درهمو ته ورسيږي بيا پکې ز كات شته .

⇦ څلرم مثال :

د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص ❼ نه نقل شوي دي چې هغه به د خپلې مېرمن او خپلو لورانو د زيوراتو نه زكات وركولو . (السنن الكبرى، الدار قطني)

⇦ پنځم مثال :

د حضرت ام المومنین عائشې رضی الله تعالی عنها څخه نقل شوي دي هغه مبارکه فرمایي :

((لا بأس بلبس الحلي إذا أعطيت زكاته))

یعني چې د زیوراتو زکات ورکوې بیا یې په استعمال څه پروا نشته . (البیهقي ، الدار قطني)

دریم بحث

# په روپیو کې زکات

پدې کې څو خبرې دي:

⇦ اول دا چې دا پیسې او روپۍ لکه افغانۍ ، پاکستانۍ روپۍ، ﷼، دینار، درهم، ډالر او داسې نور لکه د سرو او سپینو زرو داسې کارول کیږي دوکتور یوسف القرضاوي پدې اړه فرمایي :

ترجمه : دا نقدي اوراق د اسلامي بادشاهیو د اعتماد ورکولو له امله اوس د شیانو قیمتونه ګرځېدلي دي او په همدې سره خلک اخستل او خرڅول کوي او په همدې سره خلکو ته تنخوا ګانې ورکول کیږي او همدا هغه څه دي چې څوک څومره لري په هغه مرتبه کې مالدار او یا غریب ګڼل کیږي .

⇦ او په اوس وخت کې د حاجتونو په پوره کولو کې همدا کاغذي او یا د وسپنې یا المونیم نه جوړې روپۍ د سرو او سپینو زرو په څېر کار کوي او همدا هغه څه دي چې کمیږي او زیاتیږي او وده کوي نو ددې اوس حکم د سرو ا و سپینو زور دی.

⇦ نو لنډه خبره دا چې دا موجوده پیسي اوس مال دي .

⇦ په قران کریم کې چې کال په مال باندې د زکات د فرضیت خبره کیږي نو هلته پکې د سرو

سپینو او یا روپیو فرق نه دی شوی هلته په
عمومي ډول سره الله ① رسول الله ﷺ ته فرمایي :
{خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا...}
ترجمه : د دوی د مالونو څخه صدقه (زکات)
واخله چې دوی پاک او صفا کړي.
رسول الله ﷺ چې کله حضرت معاذ ❼ د یمن لور ته
د والي په ډول لېږلو هغه ته یې په عام ډول
وویل :
**فأخبرهم أن الله قد فرض عليهم زكاة تؤخذ من أموالهم وتردُّ على فقرائهم**

**ترجمه :** دوی ته خبر ورکړه چې الله (ج) په دوی
باندې صدقه (زکات) فرض کړي دي د مالدارانو
څخه به یې اخستل کیږي او غریبانو ته به ورکول
کیږي.

⇦ او د پورتنیو ټکو نه تاسې ته په ډاګه شوه
چې روپۍ هم اوس د سرو او سپینو زرو په حکم
کې دي او هغه هم مال دي نو چې په مال باندې
کوم حکم ثابت شي په دوی به هم ثابت وي.

د روپیو نصاب به څنګه معلومیږي؟

⇦ لکه مخکې چې تېر شول روپۍ پخپله د المونیم،
وسپنې کاغذاو یا بل کوم شي نه جوړه شوې وي
دا چې ددې لایق ګرځي چې باید ددېنه زکات
وویستل شي دا د سرو او سپینو زرو په ځای د
استعمال له امله یعني ددې امله چې روپۍ اوس

داسې استعماليږي لکه پخوا زمانه کې به چې ځنګه سره او سپين زر استعماليدل نو مونږ چې ددې نصاب معلومول غواړو نو د سرو او سپينو زرو د قيمت نه به يې معلوم کړو او په سرو او سپينو زرو کې چې په کوم يو کې نصاب زر پوره کيږي د هماغه له حساب نه به پرې زکات فرض ګڼل کيږي .

د پيسو د زکات د معلومولو طريقه :

ددې لپاره چې په اسانه سره د زکات مقدار معلوم کړل شي دوې طريقې دي:

١. څلوېښتمه حصه وېستل.

⇦ خپل ټول مال به په څلوېښتو تقسيم کړي چې کوم حاصل را ووتلو هغه زکات دی .

⇦ د مثال په ډول :

يو څوک پنځوس سره روپۍ لري نو :

1250 = 40 ÷ 50000

او يو کس دی چې هغه يو ميليون روپۍ لري نو :

25000 = 40 ÷ 1000000

په همدې ډول که لوی حساب وي او که وړوکی په همدې طريقه به يې زکات را وباسي .

٢. دوهمه طريقه

دوهمه طريقه يې داده چې 2.5 (دوه نيم) به را واخستل شي په ټول مال کې به ضرب کړل شي په لاس راغلې نتيجه به په سلو تقسيم شي کوم شی چې نتيجه شول هغه زکات دی .

د مثال په ډول

1250 = 100 ÷ 125000 = 50000 X 2.5

لکن پدې دواړو کې لمړۍ طریقه اسانه ده او په هغې سره ځواب په اسانه سره په لاس راځي.



# د تجارت په شیانو کې زکات

- د تجارت مال چې هرشی وي چې قیمت یې نصاب ته ورسیږي زکات پکې فرض دی (الهدایة)
- د تجارت په سامان چې کله کال واوړي نو د کال د پوره کېدو په وخت کې به یې قېمت ته کتل کیږي چې هرڅو وي نو که د نصاب نه کم وو بیا به وربانديې زکات نه وي او که د نصاب سره برابر او یا تر نصاب زیات وو نو بیا به زکات پکې فرض وي . (المضمرات)
- کله یې چې د زکات لپاره قیمت معلومولو نو که یې په سپینو زرو حسابوي او زکات یې دهغه حساب نه ورکوي او که یې د سرو زرو له حساب نه ورکوي دواړه صحیح دی لکن که د یو حساب له مخې د زکات نصاب ته نه رسېدو او د بل حساب له مخې نصاب ته رسېدو نو د کوم حساب له مخې چې د زکات نصاب ته رسیږي د هغه نه یې د حساب کړي. (البحر الرائق)
- قیمتي کاڼي، ملغلرې او نور شیان چې استعمالیږي زکات پکې نشته او که د تجارت لپاره وې بیا پکې زکات فرض کیږي. (الجوهرة النیرة)
- که زکات فرض شو دهغه نه وروسته ټول مال هلاک شو نو زکات ورکول یې اوس فرض نه دي او که د

مال څه برخه هلاکه شوه نو دهغه برخې په اندازه زکات ساقط شو. (الهداية)

⇦ او که چا د زکات نه وروسته مال پخپله هلاک کړو نو بیا زکات ساقط نه دی هغه دده په غاړه باندې فرض پاتې دی ورکوي به یې. (السراجية)

# د میوو او زمکې د حاصلاتو زکات

⇦ مخکې ددې چې د زمکې نه د را وتلیو حاصلاتو د زکات په اړه خبرې وکوو دې خبرې ته مو پام را ګرځوم چې د اسلامي احکامو په رڼا کې زمکه په دوه ډوله ده :

١. عشري زمکې

دا هغه زمکې ته وایې چې :

⇦ دهغې اهل د اسلامي غزواتو څخه وړاندې په خپله خوښه اسلام قبول کړی وي.

⇦ یا مسلمانانو هغه ځای فتح کړی وي او بیا یې زمکه په خپلو مینځونو کې تقسیم کړې وي.

⇦ یا اسلامي حکومت مسلمانانو ته ور تقسیم کړې وي.

⇦ هغه زمکه چې مسلمانان پکې هوسیږي بیا یې د حاصلاتو زمکه کړي او نیږدې زمکې ورسره نورې هم عشري زمکې وي.

⇦ هغه خاره زمکه چې مسلمانان یې اباده کړي او حاصلاتو ته یې تیاره کړي او ورسره نېږدې نوره زمکه هم د عشر زمکه وي.

⇦ دا پورتنۍ ټولې عشري زمکې دي ددې په حاصلاتو کې به اسلامي حکومت لسمه برخه اخلي دېته عشر وايي.

# عشر

⇦ اصل خبره دلته داده چې اسلام د مسلمانانو له زمکو نه عشر اخلي او د عشر په ورکولو کې ثواب دی او دا یو ډول مالي عبادت دی.

⇦ عشر په هغه زمکو کې وي چې هغه عشري زمکې وي لکه مخکې چې تېرې شوې.

⇦ عشر په ځینو مسئلو کې لکه زکات داسې دی او په ځینو کې بدل دی.

⇦ د مثال په ډول د مسلمان څخه اخستل کیږي، هغه کس به اول د عشر په مسئله او اهمیت پوهول کیږي بیا به ورڅخه اخستل کیږي.

⇦ او په څه مسئلو کې د زکات نه بدل دی د مثال په ډول ددې لپاره عقل او بلوغ ضروري نه دی امام به یې د ماشوم له زمکې نه او د لیوني د زمکې د حاصلاتو څخه هم اخلي همدارنګه که د زمکې مالک مړ شي او د زمکې نه راوتلی حاصل پاتې وو په هغه کې هم عشر شته او د زکات په

صورت کې چې د مال مالک وفات شي بیا زکات هم ساقط شي .

- د عشر په مسئله کې د امام ابو حنیفه رحمه الله د نظر له مخې کوم معلوم نصاب نشته که لږ وي او که ډېر چې څومره د زمکې نه حاصل په لاس راشي د هماغه مطابق به عشر اخستل کیږي.
- عشر په هر هغه شي کې دی چې په زمکه کې څه وکرل شي او حاصل وکوي که غله دانه وي، که میوه وي، که سبزي وي او که داسې نور هرشی وي لکه ګنی، چارمغز، بادام چې کرل شوي وي او حاصل یې کړی وي. (فتاوی قاضي خان)
- په هغه ګیاه ګانو کې چې پخپله شنه شوې وي په هغه کې عشر نشته او همدارنګه په واښو لرګیو او داسې نورو شیانو کې عشر نشته په هغه لرګیو کې عشر دی چې د تجارت لپاره وي.
- په عشر کې دا ضروري نه ده چې فصل که د اسمان په اوبو سره اوبه شوی وي او که د ویالې او سیند او چینې په اوبو په هر صورت کې عشر پکې شته. (شرح الطحاوي)
- لکن هغه زمکه چې په ډولچو او یا بله داسې تکلیفي لاره اوبه کول کیږي لکه ارهټ او داسې نور نو په هغې کې نیم عشر دی. (خزانة المفتین)
- که کومه زمکه څه وخت په داسې تکلیف اوبه کېده او څه وخت ورته اوبه راتلې نو په کال کې به اکثر وخت ته کتل کیږي او دهغې له

حساب نه به وربانديږ حکم کيږي. ( خزانة المفتين)

- هغه شهد چې په عشري زمکه کې وشي په هغې کې هم عشر شته. (خزانة المفتين)
- هغه مېوه چې د غرونو د ونو څخه را ټولول کيږي اګر که هغه ونې دده په ملک کې نه وي هم عشر پکې شته. ( الظهيرية )
- که د چا په کور کې ونه وي چې مېوه ورکوي په هغه کې عشر نشته. (عالمګيري)
- که د کوم آفت له امله هغه شی هلاک شول چې کوم د زمکې له حاصلاتو څخه را وتلي وو نو عشر هم ساقط شو او که څينې برخه يې هلاکه شوه د هماغه برخې عشر ساقط شو او که چا هلاک کړو دهغه نه به قېمت واخيستل شي او دهغه قېمت نه به عشر واخيستل شي او که مالک پخپله هلاک کړو قصداً نو دده څخه به عشر واخيستل شي که يې په لاس کې مال نه وو نو د اسلامي حکومت له لوري نه به دده په غاړه قرض پاتې شي که پدې صورت کې دی مرتد شي او يا مړ شي او څه وصيت ونه کوي دا قرض ساقط شو. (البحر الرائق)
- که د کور زمکه وي او د فصل زمکه ترې جوړه کړل شي څه شی پکې وکرل شي نو که په عشري اوبو باندې اوبه کېده نو عشري ده او که په خراجي اوبو اوبه کېده نو خراجي ده عشري اوبه ټولې هغه اوبه دي چې له هغه چينې څخه

را وزي چې د عشر په زمكه كې شوې وي او يا د هغه كوهي اوبه وي چې د عشر په زمكه كې وهل شوى وي او ټولې اسماني اوبه عشري دي. (المحيط)

- د سيحون، دجلې او فرات اوبه خراجي دي. (الكافي)

۲. خراجي زمكه

دا هغه زمكه وي چې :

- مسلمانانو فتح كړې وي او بيا يې د خپل اهل سره پداسې حالت كې پرېښې وي چې هغوى په ايمان نه وي مشرف شوي.
- يا مسلمانانو د هغه ځاى د خلكو سره صلح كړې وي او د دوى زمكې يې د همدوى په لاسونو كې پرېښې وي.
- د مسلمانانو زمكې وي بيا يې كفار ونيسي او بيا يې بېرته مسلمانان فتح كړي.
- يا هغه زمكه وي چې اسلامي حكومت يې غير مسلمينو ته ور تقسيم كړي.

# خراج

⇦ خراج په لغت کې هغه شي ته وايي چې را وتلی وي .

⇦ په اصطلاح کې : هغه خاصې وظيفې ته ويل کيږي چې اسلامي حکومت يې په خراجي زمکه مقرره کړي او په کومه زمکه چې دا وظيفه مقرره کړل شي هغې ته خراجي زمکه وايي لکه پورته چې تېر شول خراج معلومه حصه وي چې په کال کې يې اسلامي حکومته ته ورکوي او زمکه يې د مالکانو ملک وي لکن خراج داسې نه وي لکه عشر چې کوم شی حاصل را وزي نو اسلامي حکومت د هغه نه لسمه برخه اخلي بلکه دا د زمکې په سر تعين کيږي که مالک يې کري او کنه خو دا اختيار هم ورته ورکول کيږي چې دا زمکه وکره او اسلامي حکومت ته دومره حصه تري ورکړه او که يې نه کرې نو بل چا ته يې پرېږده چې هغه يې وکري او د عشر په مسئله کې کوم شی چې د زمکې نه حاصل را وزي دهغې نه به عشر اخستل کيږي او که څوک خپله زمکه نه کري نو دهغه خپله خوښه ده څوک يې ورته مجبور کولی نه شي .

⇦ هغه خراجي زمکه چې اسلامي حکومت يې په صلح سره فتح کړي او زمکه د هغه خلکو په لاس کې پاتې شي اسلامي حکومت وربانديې وظيفه مقرره

کړي دوی به هغه وظيفه ورکوي چې کله دوی په اسلام مشرف شي نو بيا به هغه وظيفه ورڅخه نه اخستله کيږي او زمکه به يې بيا عشري زمکه وي .

⇦ هغه خراجي زمکه چې امام يې په زور فتح کړي او د مسلمانانو په مينځ کې يې تقسيم نه کړي بلکه په هغوی باندې يوه حصه مقرره کړي چې په هر کال کې به يې اسلامي حکومت ته ورکوي دا زمکه به خراجي وي که ددې مالکان اوس په اسلام هم مشرف شي ددوی نه خراج نه لرې کيږي او که دا زمکه د هرچا په ولکه کې وي نو خراج به يې ورکوي .

⇦ د لمړي ځل لپاره خراج هغه وخت شروع شو چې کله حضرت عمر ❼ عراق فتح کړو د هغوی نه يې د هغوی زمکې وانه خستلې او په فاتحينو يې ور تقسيم نه کړې بلکه هغوی ته يې خاصه برخه ورمعلومه کړه چې اسلامي حکومت ته به يې ورکوي او زمکه به د دوی په ولکه کې پاتې وي همدارنګه مصر او شام او نور ځايونه چې دده ❼ په زمانه کې فتح شول هغه زمکې ده تقسيم نه کړې بلکه صرف په هغوی باندې يې خراج مقرر کړو.

# د زکات مصرف

⇦ نکته : زکات به هاشمي (سيد) ته نه ورکول کيږي اګر که هغه فقير هم وي ځکه د ا د مال خيرى دى سيدان مبارک خلک دي هغوى ددې خيري نه لرې ساتل په کار دي. (التبيين)

۱. فقير

⇦ هغه کس وي چې چې ډير کم څه ولري کوم چې نصاب ته نه رسيږي او يا خو نصاب ته رسيږي لکن نه زياتېدونکى شي وي چې وده نه کوي او يا د نصاب په اندازه شى ولري لکن هغه دده تر حاجاتو څخه زيات نه وي . (فتح القدير)

⇦ هغه فقير سړى چې عالم وي له هغه سره مرسته کول تر هغه فقير غوره دي چې هغه جاهل وي. (الزاهدي)

۲. مسکين

⇦ دا هغه کس وي چې هېڅ شى نلري او دې ته يې ضرورت وي چې د خپلې ګېډې د مړولو او يا د ځان د پټولو لپاره بايد سوال وکوي او پداسې حالت کې چې دده په لاس کې د خوراک او يا د ځان د پټولو لپاره هېڅ هم موجود نه وي نو دا سوال کولى شي او هغه مخکنى کس چې فقير وي او د ومره څه لري چې اوس يې وخوري لکن لږ وي د هغه لپاره سوال کول روا نه دي. (فتح القدير)

۳. د زکات په کار مامور

⇦ دا هغه کس وي چې د اسلامي حکومت لخوا د زکات او عشر په را ټولولو مامور شوی وي دده مصرف او د زکات او عشر د را ټولو لپاره د ټوللو مصارف به د زکات نه ورکول کیږي.

⇦ که یو څوک پخپله خپل زکات د زکات ټولولو ځای ته وروړي عامل ته به ددې زکات نه هېڅ برخه هم نه ورکول کیږي (البحر الرائق)

⇦ که د کار کونکي په لاس کې زکات هلاک شي نو دده تنخوا هم پکې سوزیږي او هغه کسانو چې زکات ورکړی دی دهغوی زکات شوی دی. (السراج الوهاج)

⇦ که هاشمي (سید) د زکات په کار مقرر شو نو خیر دی لکن تنخوا به د زکات څخه نه بلکه د بل مدرک نه ورکوي. (عالمګیري)

٤. د غلامانو په ازادولو کې .

⇦ هغه کس ته هم زکات ورکول کېدلی شي چې هغه غلام وي او مالک ورته ویلي وي چې ما ته معلوم مبلغ را برابر کړه بیا به ته ازاد شې نو هغه ته یې هم ورکول روا دي چې خپل مالک ته یې ورکړي او ځان ورڅخه ازاد کړي داسې غلام ته (مکاتب) ویل کېږي .(محیط السرخسي)

٥. الغارم

⇦ هغه کس چې د خلکو ډېر قرضونه وربانديې وي او دی یې د ورکولو لپاره هېڅ لاره نه ویني او

يا دده سره مال هم وي لكن هغه په خلكو باندې آوښتى وي د هغوى نه يې د اخستلو لپاره كومه لاره نشي پيدا كولى. (التبيين)

⇦ هغه كس چې قرضونه وربانديې شوي وي او دى يې د خلاصولو لپاره كومه لاره نه ويني دا كس د هغه كس نه غوره دى چې فقير وي يعني اول ده ته زكات وركول غوره دي. (المضمرات)

٦. د الله ① په لاره كې.

⇦ زكات هغه مجاهدينو ته هم وركول كېدلى شي چې د الله ① په لاره كې جهاد كوي . (التبيين)

٧. مسافر

⇦ هغه مسافر چې اوس له خپل وطن څخه لرې وي او پيسو ته يې ضرورت وي اګر كه په كور كې دى مالدار هم وي لكن اوس وربانديې زكات كېږي. (عالمګيري)

⇦ هغه كس چې په لاس كې يې زكات وي كه يې په دې اوه قسمه خلكو باندې لږ لږ تقسيم كړو هم صحيح كېږي او كه يې پدې كسانو كې يو كس پيدا كړو او ټول يې هغه ته وركړو نو هم صحيح ده . (فتح القدير)

⇦ كه د زكات مال دومره نه وي چې اخستونكى يې وربانديې غني شي (تر نصاب كم وي) نو بيا يې يو كس ته وركول غوره دي (الزاهدي)

- يو كس ته د نصاب برابر يا تر نصاب زيات د زكات مال وركول مكروه دي لكن بيا يې هم كه وركړو روا دى. (الهداية)
- لكن كه دا غريب كس قرض دار وو او كه هغه خپل قرضونه خلاص كړي نو اوس د ټولو پيسو نه هم ورته څه شى نه پاتې كيږي او يا كه پاتې شي هم نو د نصاب نه به كم وي نو بيا كه زياتې وركړي هم كراهيت پكې نشته همدارنګه كه دا غريب ډېر اولاد درلود او كه اوس هم دا ټولې پيسې په خپل اولاد باندې تقسيم كړي هر يو ته تر نصاب كمې ور رسيږي نو خير دى كه په يو ځاى زياتې پيسې وركړي. (فتاوى قاضي خان)
- غير مسلم غريبان خلک كه په اسلامي ملک كې اوسيږي هغوى ته زكات وركول صحيح نه دي بالاتفاق. (عالمګيري)
- هغه غير مسلم غريبان چې په اسلامي ملک كې اوسيږي كه خيرات ورته وركړل شي نو خير دى خيرات وربانديې كيږي او صدقه فطر، نذر، كفاري د امام ابو حنيفه او امام محمد رحمهما الله له نظره يې وركول صحيح دي لكن ښه داده چې مسلمانانو غريبانو ته وركړل شي (حاشية الطحاوي)
- د زكات په پيسو به جومات نه جوړوي، د لارې په جوړښت كې به يې نه لګوي، د نهرونو په وېستلو كې او د كوهيو په كندلو كې به يې نه

مصرف کوي چاته به يې د حج د مصرف لپاره نه ورکوي مجاهد ته ورکول يې روا دي لکن راساً به يې د جهاد په ضرورت کې نه مصرف کوي مړي ته په کفن اخستلو سره زکات نه خلاصيږي او نه به ورڅخه په مړي باندې پاتې قرضه خلاصه وي يعني په ټولو هغه ځايونو کې چې هلته قبض نشي کېدلی زکات به نه مصرف کوي. (التبيين)

⇦ زکات به خپلې ښځې ته نه ورکوي ځکه دهغې او دده فايدې اکثر سره شريکې وي او نه به يې خپل غريب خاوند ته ورکوي. (الهداية)

⇦ هغه څوک چې د زکات تر نصاب کم مال ولري هغه ته زکات ورکول صحيح دی اګر که هغه جوړ وي او پخپله په کار کولو قادر وي. (عالمګيري)

⇦ د مالدار سړي ماشوم زوی ته زکات ورکول نه دي صحيح او که د مالدار سړي زوی غريب وو او لوی وو نو بيا روا دی . (التبيين)

⇦ که د مالدار سړي ښځه وه لکن دا غريبه وه نو زکات ورکول ورته صحيح دي. (عالمګيري)

# مختلفې مسئلې

⇦ اندامونه لکه غاښ، پوزه او يا د کوم هډوکي کومه برخه له سرو زرو څخه جوړشي چې هغه لګېدلې وي او په اساني سره نه راويستل کيږي زکات پکې نشته. (در مختار)

⇦ د زنانه په جامو کې او یا د مردانه په ساعت کې ، چشمو کې یا په بل کوم شي کې سره زر لګېدلې وي چې را ټول کړل شي نو نصاب ته رسیږي او یا دومره وي چې را ټول یې کړي د مالک سره نورسره زر وي چې د هغې سره یې یو ځای کړي نو بیا نصاب ته رسیږي نو پدې صورتونو کې زکات واجبیږي . (البحر الرائق، امداد الفتاوای)

# د قرض زکات

⇦ کله چې څه پیسې څوک چاته قرض ورکړي نو د پیسو مالک به دهغه پیسو زکات ورکوي او کنه؟ دلته څلور صورتونه دي:

⇦ لمړی صورت :

هغه قرض چې سوداګر کوم شی خرڅ کړل او پیسې یې په مشتري (اخستونکي) باندې قرض پاتې شوې او دا شی د تجارت لپاره وو یعنې د تجارت په حساب کې یو کس ته د قرض په ډول پیسې پاتې شوې نو دا پیسې چې څومره د مشتري په ذمه پاتې وي چې کله مالک ته وسپارل شوې د ټول تېر شوي وخت زکات به یې اوس په یو ځای ورکړي او که څه برخه پیسې ورته مخکې په لاس ورغلې نو چې کله ورغلې دهغې برخه زکات به ورکړي دې ډول قرض ته قرض قوي (پیاوړی) ویل کیږي.

⇦ دوهم صورت:

دا هغه صورت دی چې څوک په مشتري داسې کوم شی خرڅ کړي چې هغه د تجارت لپاره نه وي او قیمت یې دمشتري سره قرض پاتې شو نو پدې صورت کې که کله هم مشتري دومره پیسې ورته ورکړې چې د زکات تر نصاب پورې ورسېدې نو بیا زکات فرض دی او که لږ لږ یې ورکولې د مثال په ډول سل، دوه سوه نو بیا زکات وربانديې نه شته دې قرض ته قرض وسط (مینځنی) ویل کیږي.

⇦ دریم صورت:

هغه قرض چې د کوم مال په بدل کې نه وي واجب شوی د مثال په توګه په خاوند باندې د ښځې د مهر پیسې پاتې وي دا چې کله لاس ته راشي او کال هم ورباندې تېر شي د هغې نه وروسته به زکات پرې فرض کیږي ترڅو چې د قرضدار په لاس کې دې زکات پکې نشته او دې ډول قرض ته قرض ضعیف (کمزوری) ویل کیږي .

⇦ څلرم صورت:

هغه قرض وي چې د وصول کېدو تمه یې نه کیږي لکه په داسې چا باندې وي چې هغه تښتېدلی وي یا په داسې ځای کې خښ کړل شوی وي چې اوس یې ځای معلوم نه وي مال ورک شوی وي نو دا مال که چېرته په لاس راغلو نو د تېر وخت زکات به یې ټول اداء کړي او دې ډول قرض ته مال ضمار ویل کیږي .

# د تقاعد په پیسو کې زکات

⇦ د تقاعد پیسې هغه پیسې وي چې حکومت یا یوه اداره یې د مامور د تنخوا نه د کار په وخت کې ګرځوي او ورته جمع کوي یې او چې کله دده د کار دوره ختمه شي نو یو څه نور مبلغ ورسره کړي او په یو ځای یې مامور ته ورکړي نو که له یوې خوا ورته وګورو نو دا پیسې دومره کاله هم د همدې مامور وې او حکومت ده ته د امانت په توګه کېښودې وې لکن که د بلې خوا نه ورته وګورو دا پیسې اګر که دده لپاره کېښودل شي دي لکن دی پکې د تصرف کولو نه عاجز دی نو ددې د زکات به څه حساب وي؟ نو که مخکې مونږ د قرض صورتونو ته وګورو د تقاعد پیسې د اول صورت سره سمون نه خوري چې د تجارت په سلسله کې چاته پاتې وي او نه د دوهم صورت سره سمون خوري چې د کوم شي د خرڅولو له امله قرض پاتې شوی وي او نه د څلورم صورت سره سمون خوري چې د لاس ته د راتلو امید نه وي نو دا د ریم صورت سره ډېر سمون خوري چې قرض ضعیف ورته وېل کېدل نو چې کله په لاس راشي د کال د تېرېدلو نه وروسته به زکات ورکوي دا د حضرت امام ابو حنیفه رحمه الله رایه ده او فتوی هم په همدې ده او امام ابو یوسف او امام محمد رحمهما الله د قرض په پورتنیو صورتونو کې اتفاق نه

ورسره کوي او هغوی وايې چې قرض هرڅنګه وي چې کله په لاس راشي د ټولې مودې زکات به ورڅخه اداء کول کيږي لکن ما وويل چې فتوی د امام ابو حنيفه رحمه الله په قول ده. (السرخسي)

# په بانک کې د ساتل شوي مبلغ زکات:

⇦ هغه پیسې چې په بانک کې ساتل شوې وي هغه داسې وي لکه انسان چې په کور کې ساتلې وي هروخت کولی شي هغه را واخلي او تصرف پکې وکوي نو ددې امله هغه داسې ګڼل کیږي لکه دده په لاس کې چې وي نو هر کال به د هغه مبلغ زکات ورکوي.

## Fixed Deposit (تعین شوی امانت)

⇦ دا په بانک کې د پیسو د ساتلو یو داسې صورت وي چې بانک د پیسو د مالک سره تر معلومې مودې پورې لیکل او قرارداد کوي چې تر دې وخته به ته پیسې نه غواړې او د هغه مودې د تېرېدلو نه وروسته یې د تعین شوي سود سره ورکوي نو د مثال په توګه چې یو څوک د پنځو کالو قرار داد وکوي نو ددې پنځو کلونو زکات به څه حساب وي؟ نو پدې صورت کې هم داسې دي لکه مالک چې پخپله چاته پیسې د قرض په ډول

ورکړې وي چې کله يې پيسې لاس ته راغلې نو د ټولو کلونو قرض به ترېنه اداء کړي.

نکته :

⇦ کوم مال چې حرام وي په هغې کې زکات نشته ځکه زکات عبادت دی او د حلال مال نه څه برخه ورکول فرض دي او حرام مال ټول ددې وړ دی چې بايد صدقه کړل شي او ځان ترېنه خلاص کړل شي . (مجموعة الفتاوی کتاب الزکاة)

⇦ که په مال کې تر نيم نه زيات حلال او تر نيم نه کم حرام وو نو بيا به يې زکات ورکول کيږي. (در محتار)



# د كاريگر په سامان كې زكات:

كار كونكي چې په كومو آلاتو سره كار كوي كه هغه قيمتي وي او تر نصاب واوړي دهغې به د زكات څه حكم وي؟

د كاريگر آلات او اسباب په دوه ډوله دي :

١. هغه آلات وي چې صرف د كار لپاره يې استعمالوي د مثال په ډول لكه پلاس، پېچكش او داسې نور په ماشين كې پكې كار كوي او خپله دا شيان پكې نه لگوي.

٢. دوهم هغه آلات دي چې د ضرورت په وخت كې يې په ماشين كې دهغه د برخې په ډول لگوي لكه مېخ، نټ ، شيشه او داسې نور سامان .

⇦ په اول قسم كې چې د مستري اسباب، د ساعتونو د جوړونكي آلات، د دهقان سامان او نور د كسب گر اسبابونه داخل دي دا كه هرڅومره زيات شي زكات پكې نشته.

⇦ په دوهم ډول كې زكات شته پدې كې د ټولو ماشينونو هر ډول پرزې داخلې دي.

⇦ نو په همدې ډول ديني كتابونه چې د اهل علم سره وي د هغه د اسبابو په ډول استعماليږي او دهغه د كتلو ضرورت ورته كيږي نو په هغې

کې زکات نشته او که د تجارت لپاره وي نو د نورو مالونو په ډول پکې زکات فرض دی.

⇦ همدارنګه هغه کس چې جامو ته رنګ ورکوي په یو ځای یې ډېر رنګ واخیستو او په هغه کې یې خلکو ته جامې رنګ کولې او په هغې باندې کال تېر شو نو په څومره چې کال تېر شوی وي که هغه د نصاب حد ته رسېدلو نو زکات به یې ورکوي.

د انسان په مال کې د الله ① دوهم حق

# صدقه فطر (سرسایه)

⇦ صدقه فطر ته سرسایه، فدیه، زکات فطر، فطریه، فطرانه او داسې نور نومونه هم استعمالیږي او د هجرت په دوهم کال باندې واجبه شویده.

⇦ په هر اصیل مسلمان چې د زکات د نصاب (تفصیل یې تېرشو) په اندازه مال ولري واجبه ده . (الاختیار شرح المختار)

⇦ د اختر په قرباني کې هم همدا اندازه مال د نصاب ضروري دی لکن د زکات په وخت کې وربانديې حولان حول (د کال تېرېدل) ضروري وو لکن د قرباني او سرسایې په وجوب کې یې صرف موجودیت کفایت کوي. (فتاوی قاضي خان)

⇦ سرسایه د زکات نه پدې کې هم بدله ده چې زکات په مال واجبیږي ددې لپاره چې مال پاک کړي او سرسایه په کسانو واجبیږي ددې لپاره چې کسان پاک کړي.

# د سرسایې وجوب

د صدقه فطر (سرسایې) په اړه د حضرت عبد الله بن عباس ❼ حدیث دی :

**عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ» فَرَضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَكَاةَ الْفِطْرِ طُهْرَةً لِلصَّائِمِ مِنْ اللَّغْوِ وَالرَّفَثِ وَطُعْمَةً لِلْمَسَاكِينِ مَنْ أَدَّاهَا قَبْلَ الصَّلاةِ فَهِيَ زَكَاةٌ مَقْبُولَةٌ وَمَنْ أَدَّاهَا بَعْدَ الصَّلاةِ فَهِيَ صَدَقَةٌ مِنْ الصَّدَقَاتِ**

ترجمه : د حضرت عبد الله بن عباس ❼ نه روایت دی چې هغه ویل رسول الله ♈ مقرره کړېده سرسایه د روژه لرونکي د پاکولو لپاره د بې ځایه کارونو د فحش وینا نه او دا د مسکینانو لپاره یو طعام دی چا چې د اختر تر مانځه وړاندې ورکړو نو قبوله ده او چا چې د مانځه نه وروسته ورکړو د خیراتونو څخه یو خیرات دی.

⇦ د یو تفسیر له مخې په سورت اعلی کې د تزکی څخه مراد سرسایه او د فصلی څخه مونځ هم د

اختر مونځ دی الله ① فرمايي : **قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكَّى وَذَكَرَ اسْمَ رَبِّهِ فَصَلَّى**

حضرت وكيع ابن الجراح فرمايي : **زَكَاةُ الْفِطْرِ لِشَهْرِ رَمَضَانَ كَسَجْدَتِي السَّهْوِ لِلصَّلاةِ، تَجْبُرُ نُقْصَانَ الصَّوْمِ كَمَا يَجْبُرُ السُّجُودُ نُقْصَانَ الصَّلاةِ.**

⇦ يعني سرسايه د رمضان لپاره لکه د سهو سجده د مانځه لپاره ده په روژه کې چې څه نقصان راشي سرسايه يې پوره کوي لکه په مانځه کې چې څه نقصان راشي د سهوې سجده يې پوره کوي.

⇦ حضرت ابن منذر رحمه الله وايي چې د سرسايې په فرضيت باندې اجماع ده هغه وايي : أجمع كل من نحفظ عنه من أهل العلم على أن زكاة الفطر فرض.

⇦ د کومو کسانو څخه به چې مونږ علم زده کولو هغوی ټولو پدې خبره اجماع کړېده چې سرسايه فرض ده .

# د سرسایې حکمت

⇦ کله کله د روژې په دوران کې د روژه لرونکي څخه څه نقصانونه وشي، بې ځایه خبرې وکوي، فحش ووایي نا محرم انسان ته وګوري او یا داسې نور نو الله ① د دوی لپاره صدقه فطر پاکونکي مقرره کړېده پدې سره به دوی پاک شي او په قیامت کې به د دوی د روژې ثواب دوی ته پوره په لاس ورشي .

⇦ بل دا چې د اختر په ورځ به ټول مسلمانان په یو ډول په خوشحالیو کې شریکان شي هغه کسان چې غریبان وي او دومره څه شی یې نه درلودل چې د اختر لپاره یې مصرف او سهولتونه ورباندې برابر کړي اوس به هغوی هم د مالدارو خلکو د سرسایې په اخستلو باندې بریالي شي چې دا به ورته خوشحالي ورکړي ددې امله رسول الله ♈ فرمایي : دوی (غریبان) پدې ورځ د ګرځېدلو او سوال کولو نه غني کړئ. (یعني دومره څه ورکړئ چې د دوی دهغې نه وروسته سوال کولو ته ضرورت نه پښیږي) .

⇦ بل په سرسایه ورکولو سره د الله ① په حضور کې شکر په حای کول دي چې مونږ ته یې ژوند او صحت راکړی دی ځکه دا د هر سر نه ورکول دي

چې د ټولو د پیدائښت او د پالنې شکریه ورباندې په ځای شي.

## سرسایه په چا واجب ده؟

⇦ سرسایه په هر هغه مسلمان واجب ده نر وي او که ښځه ، غلام وي که اصیل ، لوی وي که وړوکی چې د اختر په شپه او ورځ کې دومره څه شی ولري چې دده او دده د عیال له خوراک نه زیات وي .

⇦ مسلمان به د خپل ځان د خپلې ښځې او خپلو ماشومانو سرسایه ورکوي هغه ماشوم چې په ګېډه وي او ژوندی شوی وي سرسایه یې ورکول مستحب دي.



# د سرسايې د ورکولو وخت

⇦ که څوک يې د اختر نه دوه درى ورځې وړاندې ورکړي نو دا ښه خبره ده اکثر صحابه وو به همداسې کول .

⇦ د امام ابي حنيفه رحمه الله په مذهب چې د اختر د ورځې سهار را وخيږي نو ورکول يې واجب شي سنت وخت يې د اختر په ورح تر مانځه وړاندې دى .

⇦ د بخاري شريف په حديث کې حضرت نافع فرمايي :

## وكانوا يعطون قبل الفطر بيوم أو يومين

⇦ يعنى دوى (صحابه وو ) به صدقه فطر د اختر نه يوه يا دوه ورځې وړاندې ورکوله .

⇦ لکه مخکې چې د حضرت ابن عباس ❼ په حديث کې تېر شول د اختر د مانځه څخه يې وروسته کول نه دي په کار.

⇦ که څوک د سحر د راختلو نه مخکې د اختر په شپه وفات شي نو دهغه له لوري د سرسايې ورکول واجب نه دي ځکه د امام ابي حنيفه رحمه الله په مذهب د سحر د راختلو سره واجبيږي او هغه تردې مخکې وفات شوى دى همدارنګه که څوک پدې شپه کې د سحر را ختلو څخه وړاندې پيدا شو نو دهغه صدقه فطر ورکول واجب دي يا فقير د سحر راختلو نه وړاندې مالدار شو نو

صدقه فطر ورکول پرې واجب دي او که څوک د سحر راختلو نه مخکې د کوم سبب له امله غريب شو نو بيا وربانډې صدقه فطر لازمه نه ده. (محيط السرخسي)

⇦ نو که څوک د اختر په ورځ وفات شي صدقه فطر وربانډې واجبه شوې وه همدارنګه که څوک د اختر په ورځ په سحر کې مالدار وو او وروسته غريب شو نو سرسايه به ورکوي وربانډې واجبه ده .

⇦ لکه مخکې چې تېر شول که د اختر د ورځې نه يې وړاندې ورکړه نو صحيح ده او که د اختر په ورځ يې ورنه کړه نو بيا هم نه ساقطيږي ورکول يې واجب دي. (الهداية)

⇦ هغه کس چې روژه وربانډې د څه عذر له امله فرض نه وي لکه زيات سپين ږيرى وي او يا سخت مريض وي نو صدقه فطر له هغه څخه نه ساقطيږي هغه به ورکوي همدارنګه که بغير د عذر نه چا روژه نه وه نيولې نو صدقه فطر ورکول ترېنه نه ساقطيږي وربانډې واجب دي. (المضمرات)

⇦ هغه ماشوم چې پيسې ولري پلار او يا نيکه او يا بل دهغه د مال متصرف به دده له لوري نه سرسايه ورکوي.

⇦ که د انسان زامن وي او هغوى بالغان وي نو په ده نه ده ضروري چې دهغوى سرسايه هم ورکړي او که يې ورکړي نو صحيح کيږي. (الهداية)

⇦ که څوک مړ شي او په هغه باندې صدقه فطر پاتې وه اوس به يې د ميراث څخه نه اخستل کيږي لکن که وارثانو يې اجازه وکوله چې د هغه د ميراث نه دې صدقه فطر اداء کړل شي بيا يې د ورڅخه واخلي او که وصيت يې کړی وو نو بيا يې د دهغه د مال نه واخلي که د وارثانو يې خوښه وه او که نه وه لکن د مال د دريمې برخې نه به يې خلاصوي او که نه خلاصېدو نو صرف دريمه برخه چې ترې ورکړي نور به ترينه نه ورکوي. (الجوهرة النيرة)



# په صدقه فطر کې به څه شی ورکوي؟

صدقه فطر له څلورو شیانو څخه واجبه ده :

١. غنم
٢. وربشې
٣. خورما
٤. ممیز

د صدقه فطر اندازه :

⇦ د غنمو نه نیمه پیمانه د وربشوخورما نه یوه پیمانه په ممیزو کې د امام ابو حنیفه رحمه الله د یو قول له مخې یوه پیمانه او د یو قول له مخې نیمه پیمانه ورکول واجب دي.

⇦ او که ددې شیانو څخه بغیر بل کوم شی ورکول غواړي لکه جامه یا داسې نور نو د همدې شیانو د قیمت له حسابه څخه به یې ورکوي .

ددې نه چې پخپله دا شیان ورکړي دا غوره ده چې ددې شیانو قېمت ورکړي . (الجوهرة النيرة)

# د اختر قرباني

د قرباني فضيلت:
دا د هر لوی اختر د مانځه نه وروسته قرباني کول دي د اسلامي شريعت د شعائرو څني يو دی دلائل يې مشهور او معروف دي .
د مثال په ډول :
د قربانۍ په اړه الله ① فرمايي :
سورت الحج اية ٣٧

لَن يَنَالَ ٱللَّهَ لُحُومُهَا وَلَا دِمَآؤُهَا وَلَٰكِن يَنَالُهُ ٱلتَّقْوَىٰ مِنكُمْ ۚ كَذَٰلِكَ سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُكَبِّرُوا۟ ٱللَّهَ عَلَىٰ مَا هَدَىٰكُمْ ۗ وَبَشِّرِ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴿٣٧﴾

ترجمه : له سره نه رسيږي الله ① ته غوښې د دوی او نه وينې د دوی (بې له خالص نيت څخه) لکن رسيږي دغه الله ① ته پرهيزګاري (او اخلاص چې ملګری وي له دغو ذبحو سره بې له ريا) له تاسې (همداسې لکه چې ذکر شو تابع کړي يې دي دغه حيوانات چې تاسې يې ذبح کوئ تاسې ته د پاره

ددي چې په لويي سره ياد کړئ الله ① (الله اکبر وواياست د هغوی د حلالولو په وخت کې) په هغه طريقه چې لاره يې ښودلې ده تاسې ته او زيری ورکړه نيکو کارانو ته (دجنت) .

په بل ځای کې الله ① فرمايي :

فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَٱنۡحَرۡ ۝٢

ترجمه : نو لمونځ کوه لپاره د رب خپل او قرباني کوه.

حضرت ابو هريره ❼ فرمايي : **مَنْ وَجَدَ مِنْكُمْ سَعَةً فَلَمْ يُضَحِّ، فَلا يَقْرَبَنَّ مُصَلانَا** (هغه څوک چې ددې وس لري چې قرباني وکوي او ويې نه کوله نو زمونږ عيدگاه ته د نه راځي.)

د قرباني حکم:

د امام ابي حنيفه رحمه الله نه بغير نور تقريباً متفق دي چې دا سنت موکد ده .

امام ا بو حنيفه رحمه الله يې واجب مني او ابن تيمية هم د امام صاحب دا قول غوره کړی وو.

## د قربانی د وجوب شرطونه

قربانـي پـه هغـه كس لازمـيږي چې هغـه مـالـدار وي پـه غريـب بـانـدې نـه ده لازمـه او پـه قـربـانـي كـولـو كې د ژونـد شكريـه او د حضرت ابـراهيم عـليـه الـسلام د سنـتو ژونـدي ساتـل دي .

څه وخت واجبیږي ؟

د وجوب لـپاره يې څه شرطونـه دي :

١. اسلام

⇦ پـه غيـر مسلم بـانـدې نـه ده ضروري بـلكه پـه هغه بـانـدې اول دا ضروري دي چې هغه ايـمان راوړي .

⇦ كـه څوک د اختـر پـه سحر کې كـافـر وو او وروستـه الله ① وربـانـدې رحم وكـولـو او مسلمـان شو نـو تـرڅو چې د قـربـانـي كـولـو وخت وي نـو قـربـانـي وربـانـدې واجبيږي.

۲. حریة

⇦ ازادي په کار ده په غلام باندې نه ده واجبه لکه د کافر په مسئله کې چې تېر شول که څوک د اختر په سحر کې غلام وي وروسته یې الله ازادي نصیب کړي نو اوس ورباندې قرباني لازمه ده چې نور شرطونه یې پوره وي.

۳. غني کېدل .

⇦ په غریب باندې نه ده لازمه او څومره مالداري ورته په کار ده؟ اندازه یې په صدقه فطر کې تېره شوه یعني چې په موجوده وخت کې ورسره د زکات نصاب پوره وي په زکات کې د همدې نصاب ضرورت وو او په خوا کې ورسره حولان حول هم ضروري وو او په صدقه فطر او د اختر په قرباني کې حولان حول ورته ضروري نه دی .

⇦ نو چې لا چا سره تر خپلو ضروري مصارفو څخه د اختر په وخت کې اضافي دوه سوه درهمه (د سپینو زرو روپۍ) او یا شل دیناره (د سرو زرو نه جوړې روپۍ) ولري قرباني به کوي.

٤. اقامت

⇦ د قرباني د لزوم لپاره اقامت هم ضروري دی په مسافر باندې نشته دلته هم داسې ده که څوک د سحر په اول وخت کې مسافر وو لکن وروسته یې بیا د اقامت نیت وکولو ترڅو چې د قرباني کولو وخت ورسره شته نو قرباني کول ورباندې لازم دي.

- هغه کس چې مالدار وي او د قربانۍ لپاره څاروی واخلي بیا د اختر نه وړاندې یې د سفر اراده وکوله او د هغې ارادې له مخې ښکاره کېده چې دی به په اختر کې مسافر وي نو هغه څاروی خرڅولی شي. (عالمګیري)
- پدې شرطونو کې نارینه او ښځینه یو ډول دي په دواړو باندې په یو شان قرباني لازمه ده چې دا شرطونه موجود شي .
- د قربانۍ په مسئله کې لوی والی او بلوغ ضروري نه دی که ماشوم مال درلود نو چې د چا په لاس کې یې د مال تصرف وو نو هغه د ورته قرباني وکوي . ( عالمګیري)
- پدې صورت کې به د ماشوم د مال متصرف ددې اختیار نه لري چې د ماشوم د قرباني غوښه خیرات کړي بلکه ده ته به یې ساتي او که نه ساتل کېده نو دا د خرڅه کړي او ددې په ځای دې ماشوم ته بل داسې شی واخلي چې ساتل کیږي هغه د ورته وساتي چې دی یې پخپله وخوري. (فتاوی قاضي خان)
- د انسان هغه اولاد چې لوی شي په پلار لازمه نه ده چې د هغوی د لورې نه قرباني وکوي او که هغو ورته وویلې ده په خپله خوښه وکوله نو صحیح ده .

# د قربانۍ وخت

⇦ د قربانۍ وخت درې ورځې دي د ذی الحجې د میاشتې لسمه ، یولسمه او دولسمه که څه مشکل ورته نه وي تر ټولو نه اوله ورځ غوره ده او آخري ورځ یې بیا غوره نه ده .

⇦ پدې دریو شپو او ورځو کې قرباني کول صحیح دې که د ورځې څوک وخت ورته ونلري نو د شپې د وکوي.

⇦ که د اختر ورځ یقیني معلومه نه وه او په شک سره اختر شو نو بیا دې د اختر تر دریمې ورځې پورې قرباني نه ځنډوي او که ترې پاتې شوه نو پدې کې شک دی چې دا د اختر دریمه ورځ ده او که څلرمه نو ددې امله کله چې مال حلال کړي مستحبه ده چې خپله به خوراک ترینه نه کوي بلکه ټوله به خیرات کړي او بیا به دومره پیسې نورې هم ورپسې خیرات کړي څومره چې د ژندي مال او مړه مال په مینځ کې فرق وي نو که دا اوس د اختر څلرمه ورځ وي نو دا مال دده له لوري ټول خیرات شو. (محیط السرخسي / عالمګیري)

⇦ په کومو ځایونو کې چې د اختر مونځ نه کیږي نو چې سحر شي بیا قربانې کېدلی شي او په کومو ځایونوکې چې مونځ کیږي نو تر مانځه څخه وروسته کول ضروري دي. (الظهیریة)

- که امام په مانځه کې وو او سلام یې را ګرځولی نه وو نو بیا هم قرباني نه صحیح کیږي. (البدائع)
- او که تردې پورې یې صبر وکولو چې امام یو طرف ته سلام وګرځولو بیا یې چاړه وربانډې را تېره کړه نو بیا قرباني صحیح ده. (محیط السرخسي)
- که مونځ وشو او خلکو مالونه حلال کړل وروسته ښکاره شوه چې مونځ د کوم شي له امله نه دی صحیح شوی د مثال په توګه د امام کالي پاک نه وو او یا یې اودس نه وو نو بالاتفاق قربانی صحیح دي او که دا خبره مخکې ددې ښکاره شوه چې خلک تراوسه د جومات څخه نه دي خپاره شوي نو مونځ به راوګرځوي او که د امام د سلام ګرځولو نه چا وروسته پدې وخت کې قرباني کړې وه قرباني صحیح ده .
- او که داسې خلک وو چې اوس یې اعلان واورېدو چې مونځ به بیا کوو مونځ نه دی صحیح نو چې ددې اعلان آورېدو څخه وروسته چا قرباني وکوله نو نه ده صحیح او که چا اعلان نه وو آورېدلی دهغوی صحیح ده. (عالمګیري)
- کله چې امام مونځ ختم کړو او هغه خطبه ویله پدې وخت کې چې څاروی حلال شي نو قرباني صحیح ده .
- که د کوم عذر له امله مونځ پاتې شو نو تر زوال وړاندې قرباني نه کیږي او د لمر تر

زوال وروسته کيږي او کله چې دوهمه ورځ شي نو د سحر راختلو وروسته بيا قرباني کېدلی شي په دوهمه ورځ بيا د اختر مانځه ته انتظار کول ضروري نه دي ځکه د مانځه اصلي وخت خو د اختر د اولې ورځې د لمر په زوال سره ختم شو او په دوهمه ورځ مونځ کول خو د اصلي مانځه قضاء را ګرځول دي. (عالمګيري)

⇦ که داسې ښار وي چې هلته اوس د څه اسبابو او علتونو له امله داسې حالت راغلی وي چې هلته نه منظم حکومت او نه د اخترونو مونځونه وي نو هغه ځای هم اوس د کلي په حکم کې دی هلته اوس د سحر د راختلو وروسته قرباني کېدلی شي. (الفتاوی الکبری)

⇦ که د کلي نه څوک ښار ته راشي دلته د اختر مونځ کوي نو که دی په ښار کې قرباني کوي نو د اختر د مانځه څخه به يې وروسته کوي او که په کور کې دده د قربانۍ څاروی ولاړ وي نو هغوی ته چې اجازه ورکړي هغوی دده له لوري نه د سحر راختلو وروسته قرباني کولی شي . (الظهيرية)

⇦ که د ښار نه سحر وختي خپله قرباني کليوالې ساحې ته يوسي چې هلته د اختر مونځ نه کيږي نو که دا کلی له ښار نه دومره لرې وو چې د دريو شپو او ورځو منزل وو ورته يعني که دې کلي ته مسافر ور روان شي نو د سفر احکام د مانځه کمېدل، د روژې د خوراک روا والی، د

مسح موده دری ورځې کېدل او داسې نور پرې عملي کېدلی شوی نو بیا یې د اختر تر مانځه وړاندې هم ذبح کول صحیح کیږي او که تردې نه نېږدې وو بیا نه ده صحیح. (خزانة المفتین)

⇦ که څوک په ځان خاص او معین مال لازم کړي چې زه به دا مال قرباني کوم او یا یې د قربانۍ لپاره یو څاروی واخیستو بیا د قربانۍ شپې تېرې شوې او ده قرباني نه کړو نو اوس ددې قرباني کول پاتې شول همداسې ژوندی به یې چا ته په خیرات کې ورکړي او که ددې قربانۍ مالک مالدار وو قرباني یې په ځان لازمه کړې نه وه پخپله د مالدار کېدو له امله وربانډې واجبه وه نو هغه به د قربانۍ د مال د قیمت په اندازه پیسې خیرات کړي. (العتابية)

⇦ که د قربانۍ لپاره څاروی اخستل شوی وو او د قربانۍ په ورځو کې قرباني نه کړل شو نو بیا به یې ژوندی خیرات کوي او که یې حلال کړو نو غوښه به یې مکمله په خیرات کې ورکړي او بیا به د ژوندي او حلال شوي مال په مینځ کې فرق پیسې هم خیرات کړي او ددې مال د غوښې نه به خپله هېڅ ډول خوراک نه کوي مکمل به خیرات کیږي او که څه خوراک یې ترینه وکولو دهغه خوراک قېمت به هم خیرات کړي. (عالمګیري)

⇦ په پورتني صورت کې داسې هم کولی شي چې دا مال خرڅ کړي او هغه قیمت یې مکمل خیرات کړي (عالمګیري)

⇦ که څوک وصیت وکوي چې دده له لوري دې قرباني وکول شي او څه یې یاد کړي نه وو چې څه د قرباني کړي نو یو پسه (ګډ) چې هم قرباني کړي نو صحیح دی ، او هغه څوک چې ژوندی وي او وکیل ونیسي چې دده له لوري د قرباني وکوي نو چې ترڅو یې تعین نه وي کړی او یا یې قیمت نه وي ښودلی چې ددومره پیسو قرباني وکوه نو نه ده صحیح . (البدائع)

⇦ قرباني په لوی اختر کې داسې واجب عمل دی چې خاص وخت یې نه دی معلوم ترڅو چې د قرباني کولو وخت وي نو دی کولی شي چې قرباني وکوي ضروري نه ده چې خامخا به د اختر په اوله ورځ تر مانځه وروسته وي. (عالمګیري)

# د قربانۍ څاروی

⇦ د قربانۍ مال به د دریو شیانو څخه وي
١. پسونه (ګډان)
٢. اوښان
٣. غوایان

⇦ په پورتنیو دری واړو صنفونو کې نارینه او ښځینه یو شان دي او په دوی کې هر قسم یې د

قربانۍ لپاره صحیح دی او پدې حکم کې سیرلي او بیزې د پسونو څخه دي او ګامېښان د غوایانو له جملې څخه دي .

- په قربانۍ کې ځنګلي حیوانات حلالول نه دي صحیح او که وحشي او کورنی حیوان سره یوځای شي کوم حیوان چې تربنه پیدا شي نو اعتبار یې د مور طرف ته دی که مور یې اهلي حیوان وو نو قرباني یې صحیح کیږي او که مور یې وحشي وه نو قرباني یې نه صحیح کیږي.
- د مثال په ډول که کورنی غوایی او ځنګلي غوا سره یو ځای شي او ددې نه حیوان پیدا شي نو قرباني وربانديې نه کیږي .

# د قربانۍ د څاروي عمر

- په پورتنیو دریو ډولو حیواناتو کې چې کوم څاروی د قرباني لپاره تعین کول کیږي دهغې عمر باید تر لاندې ښکاره شویو عمرو نو څخه کم نه وي .
- اوښ پنځه کاله
- غوایی او ګامېښ دوه کاله
- بېزه پسه (ګډ) یو کلن لکن که په پسونو کې وري وي چې هغه داسې ساتل شوي وي چې د شپږو میاشتو وي او په یو کلنو کې ګډ شي پکې

ورکیږي نو په هغه باندې هم قرباني صحیح ده .

# د قرباني اندازه

⇦ پسه (ګډ) او سېږلی د یو کس له لوري قرباني کېدلی شي اګر که هرڅو لوی وي ، اګر که په شکل کې لکه د خوسې دومره وي اګر که قېمت یې لوړ وي نو بیا هم صرف د یو کس له لوري قرباني کېدلی شي .

⇦ اوښ او غوایی زیات نه زیات د اوو کسو له لوري نه قرباني کېدلی شي .

⇦ په اوښ او غوایي کې که کوم داسې حیوان وي چې د عمر له نګاه نه قرباني وربانديې صحیح کیږي لکن په شکل او جسم کې وړوکی وي بیا هم د اوو کسانو لپاره بس کیږي .

⇦ که چا د قرباني لپاره څاروی واخیسته او بیا یې د قرباني نه وړاندې خرڅول غوښتل خرڅولی یې شي کنه؟

ددې دری صورتونه دي :

١. څاروی یې صرف د قربانۍ په نیت اخستی وو.

٢. څاروی یې د قربانۍ لپاره نه وو اخستی لکن وروسته یې اراده وکوله چې قرباني به یې کړي.

۳. څاروی یې د قربانۍ لپاره نه وو اخستی لکن بیا وروسته یې په خپله ژبه په ځان نظر کړه چې دا څاروی به قرباني کوي.

په اول او دریم صورت کې بالاتفاق دا مال اوس د قربانۍ لپاره تعین کړل شوی دی او په دوهم صورت کې د امام ابي یوسف رحمه الله په مذهب چې اول یې د قربانۍ لپاره نه وو اخستی اوس صرف په نیت سره د قربانۍ لپاره نه کیږي او امام ابو حنیفه رحمه الله فرمایي چې صرف په نیت باندې هم دا مال اوس صرف د قربانۍ دی .

نو د امام صاحب په مذهب په دریو واړو صورتونو کې اوس دا څاروی نشي خرڅولی دا به صرف قربانۍ ته ساتي.

یو انسان څو څاروي هم د قربانۍ په موخه حلالولی شي یعین یو کس متعددې قربانیانې کولی شي .

# د قربانـي د څاروي څرنګوالی

- د قربانۍ څاروی باید د هر ډول لوی عیب څخه پاک وي .
- هغه څاروی چې ښکر یې له اصل څخه نه وي را ختلي نو قرباني وربانديې کیږي او که یې ښکر لږ مات شوی وي نو بیا هم ورباندې کیږي.
- که د قربانۍ د څاروي ښکر په بیخ کې مات شوی وي چې په کوم ځای کې ښکر د هډوکي سره لګېدلی وي نو که په هغه ځای کې مات شي بیا په قرباني کې د منلو وړ نه دی . (البدائع)
- هغه حیوان چې محجوب (له جماع نه عاجز) وي قرباني وربانديې صحیح کیږي همدارنګه هغه مونث حیوان چې د عمر د ډېر والي له امله حمل نه اخلي نو په قرباني کې یې حلالول صحیح دي.
- همدارنګه هغه حیوان چې وچ شوی وي او بغیر د کوم عیب نه یې شودې بندې شوې وي قرباني وربانديې صحیح ده.
- که مونث حیوان حمل اخستی وي او یا د وړوکی بچي مور وي نو بیا هم قرباني وربانديې صحیح ده لکن غوره نه دی . (رد المحتار)
- که د ګډ (پسه) له پیدائښت نه وړوکی لم وي چې لکه لکۍ داسې ښکاره کیږي او یا یې له

پیدائښت ځخه لم نه وي نو بیا هم قرباني وربانديږ کېدلی شي. (عالمګیري)

⇦ هغه چې سترګې یې یو طرف ته کږې وې قرباني وربانديږ کیږي. (عالمګیري)

⇦ هغه حیوان چې غوږ یې وړوکی وي دهغه قرباني صحیح ده .

⇦ هغه حیوان چې غاښونه یې نه وي که هغه ځریدلی شوی او پخپله یې خوراک کولی شوای نو قرباني وربانديږ صحیح ده. (البدائع)

⇦ هغه حیوان چې غوږ یې په اوږدو سره شکېدلی وي قرباني وربانديږ صحیح ده . (عالمګیري)

⇦ که مال یې د قربانۍ ځای ته راوستلو او دلته یې پښه ماته شوه او په هماغه ځای کې یې حلال کړو نو صحیح دی همدارنګه که پدې ځای کې ړنده شوه ځکه پدې وخت کې اکثر مالونه زور کوي او کېدای شي د هغې د ټینګولو په وخت کې هغه په کوم شي ولګیږي او عیبجن شي .

# په لاندې څارويو قرباني نه کيږي

- چې ړوند وي . (عالمګيري)
- هغه چې په يوه سترګه ړوند وي او دا له لرې ښکاره کيږي . (عالمګيري)
- هغه حيوان چې پداسې توګه ګوډ وي چې په خپلو پښو د حلالولو تر ځای پورې هم نشي تلی.
- هغه حيوان چې ډېر بېمار وي او له لرې ښکاره کيږي چې بېمار دی. (عالمګيري)
- هغه حيوان چې غوږونه يې پرې شوې وي يا يې پيدائشي غوږ نه وي ، يا د پسه (ګډ) لم پرې شوی وي .
- که غوږ يې لږ پرې شي او لږ پاتې وي نو وبه کتل شي که پرې شوی ډېر وو نو بيا قرباني وربانديې نه ده صحيح او که پاتې ډېر وو لږ پرې شوی وو بيا يې قرباني صحيح ده .
- که لېونی وي او داسې لېونتوب يې وي چې خوراک نه کوي او په عامه توګه ژوند نشي کولی نو قرباني وربانديې نه کيږي.
- هغه چې د څرمن بېماري ولرې قرباني وربانديې کيږي لکن که ډېر کمزوری شوی وي او يا د څرمنې د بيماري تاثير يې غوښې ته رسېدلی وي نو بيا وربانديې نه کيږي.

⇦ چې پوزه یې پرې شوې وي قرباني وربانډې نه کیږي.

⇦ هغه مونث حیوان چې غولانځ یې پرې شوې وي او یا یې غولانځ وچه شوې وي قرباني وربانډې نه کیږي . (عالمګیري)

⇦ چې ژبه یې پرې وي نو که ددې امله یې خوراک نشوای کولی قرباني وربانډې نه کیږي او که یې په خوراک کې مشکل نه وو بیا وربانډې کیږي. (التتارخانیة)

⇦ هغه حیوان چې صرف ګندګي خوري او بل شی نه خوري قرباني وربانډې نه کیږي او که دا حیوان اوښ وي نو څلوېښت ورځې به په کور کې بند ساتل کیږي صرف ګیاه به ورکوي چې ویې خوري او غوایی به شل شپې ساتي او پسه (ګډ) به لس ورځې وساتي بیا یې غوښه پاکیږي بیا یې قرباني صحیح ده.

⇦ او که چېرته چرګ ګندګي خوري او په عامو ورځو کې یې حلالول غواړي نو هغه به هم درې ورځي په کور کې بند ساتي او پاک خوراکونه به ورکوي بیا به یې حلالوي . (فتاوی قاضي خان)

⇦ که د قربانۍ د څاروي د تیونو سرونه پرې وو قرباني وربانډې نه کیږي (عالمګیري)

⇦ که په مېږه (ګډه) کې د یو تي نه شودې بندې شوې وي قرباني وربانډې نه کیږي او په غوایه

او اوښه کې که د دوو نه بندې شوې وې بیا وربانديې نه کیږي . (التتارخانیة)

⇦ چې په څلورو پښو کې یې یوه پښه پرې وي قرباني وربانديې نه کیږي (التتارخانیة)

⇦ که مالدار سړي جوړ مال واخیستو دده سره عیب جن شو سترګه یې ړنده شوه، غوږ یې پرې شو ، لم یې پرې شو ، لکۍ ترې پرې شوه پښه یې ګوډه شوه چې هغه حیوان نور وربانديې نشوای تلی نو هغه به بل حیوان اخلي او که دا د قرباني مالک غریب وو نو هغه همدا حلالولی شي. (عالمګیري)

⇦ که په یوه سودا کې یې لس مالونه واخیستل د مثال په توګه له سودا ګر سره ۱۰ پسونه وو تول یې ترینه په یولک واخیستل او لس کسان پکې شریکان وو چې کله راغلل نو معلومه شوه چې یو پکې ړوند دی نو هیڅ نه غوښتل چې ړوند د ده ته ورکړل شي نو د تولو کسانو قرباني نه کیږي ځکه نه پسونه پاتې دي د لسو کسانو لپاره دا نشي بس کیدلی . (فتاوی قاضي خان)

## په قربانۍ کې شرکت

⇦ مخکې تیر شول چې یو پسه (ګډ) چې څومره لوی هم شي صرف د یو کس له لوري قرباني کیږي

غوایی او اوښ د اوو کسانو له لوري قرباني کېدلی شي .

⇦ په قرباني کې که داسې کس شریک شي چې هغه قرباني صرف د غوښې د حاصلولو لپاره کړې وي او د ثواب نیت یې نه وي نو ورسره د ټولو شریکانو قرباني نه کیږي همدارنګه که د یو کس مطلب ریا او ځان ښکاره کول وو نو ورسره د ټولو شریکانو قرباني نه صحیح کیږي.

⇦ همدارنګه که له دوی سره یو غیر مسلم شریک شوی وو نو د ټولو قرباني نه صحیح کیږي .

⇦ که چا یوغوایی پدې نیت واخیستو چې دا به ټول زه له خپله لوري قرباني کوم بیا یې وروسته پکې شپږ کسان نور شریکان کړل دا مکروه ده بیا هم قرباني وربانديې کیږي او که یې د اخستلو په وخت کې دا نیت وو چې دا به واخلم او بیا به نور کسان پکې شریکان کړم بیا پکې کراهیت نشته .(عالمګیري)

⇦ او که دا مال اخستونکی غریب وو قرباني وربانديې لازمه نه وه نو مال یې واخیستو چې دا به ټول زه له خپل لوري قرباني کړم نو بیا خو ده د اخستلو په وخت کې دا په ځان لازمه کړه چې دا به ټول قرباني کوي نو بیا پکې بل څوک نشي شریکولی او که یې شریکان کړل نو کومې پیسې چې د هغوی نه واخلي هغه به ټولې صدقه کوي .(عالمګیري)

⇦ که چېرته په کومه قرباني کې په اوښ یا غوایه کې آته کسان شریکان شول بیا هم د ټولو قرباني نه ده صحیح . (عالمګیري)

⇦ که چا غوایی واخیستو او په نیت کې یې دا وو چې یوه برخه به مې د سږ کال قرباني شي او پاتې شپږ برخې به مې د تېرو کالونو قرباني شي چې هغه وخت په ما واجبه وه ما نه وه کړې نو د سږ کال لپاره یې قرباني صحیح ده د تېرو کلونو لپاره نه صحیح کیږي. (عالمګیري)

⇦ که په شریکانو کې ځینو ددې لپاره برخه اخیستې وه چې د تېر کال د قضاء نیت یې پکې کړی وو او ځینو پکې د نفلي قرباني نیت کړی وو او ځینو د واجبې قرباني نیت کړی وو نو قرباني د ټولو صحیح ده او هغه چا چې د تېر کال نیت یې کړی دی د هغه له لوري قرباني نه بلکه صدقه ده مخکې خبره تېره شوه چې د قرباني قضایي نه راګرځي. (عالمګیري)

⇦ که په یوه سودا کې لسو کسانو لس پسونه واخیستل او د هر یو قیمت یې معلوم نه کړو او ټول یې په شریکه حلال کړل پدې لسو کې دا ټول لس کسان سره شریکان دي غوښه به سره یو ځای کړي او په وزن یا په اټکل به یې سره بېرته تقسیم کړي او داسې به یې تقسیم کړي چې هر یو ته پکې څلور پښې او یو سر او نور شیان ور ورسیږي . (عالمګیري)

# د قربانـي د كولو لپاره نائب او وكيل نيول

د قرباني په كولو كې نيابت (نائب نيول) هم كار كوي يو انسان كولی شي چې ددې واجب لپاره ځان ته نائب ونيسي ځكه دا داسې ثوابي عمل دی چې تر مال پورې تړلی دی او د قرباني كونكي د ځان استعمال پكې ضروري نه دی نو انسان كولی شي چاته مال وركړي چې پدې مال زما له لوري نه قرباني وكوه. (عالمګيري)

# د مړيو له لوري قرباني كول

⇦ امام احمد، ابو داود، ترمذي او حاكم يو حديث نقل كړی دی چې حضرت علي ❼ دوه پسونه (ګډان) حلال كړل يو د رسول الله ♈ له لوري نه او يو له خپله لوري او بيا يې وفرمايل: ماته رسول الله ♈ حكم كړی وو چې زه به دهغه له لوري قرباني كوم ددې امله زه هر وخت د رسول الله ♈ له لوري نه قرباني كوم.

امام طيبي ددې حديث په اړه فرمايي:

دا ددې خبرې دليل دی كه څوک د مړي د لوري نه قرباني كول غواړي نو ود كوي روا ده.

# د قرباني مستحبات

⇦ د قرباني په مال کې مستحب ده چې هغه ښه ساتل شوی ، صحتمن او چاغ مال وي .

⇦ که یې په ښه طریقه حلاله کولی شوای غوره خبره ده چې په خپله یې حلال کړي او که یې خپله نشوای کولی نو د بل چا مرسته پکې واخلي لکن هغه څوک چې دی ترې مدد غواړي مسلمان به وي که آتش پرست یا بت پرست ورته حلال کړو نو بالکل نه ده صحیح او که یهودي او نصراني ورته حلال کړو مکروه دی .

⇦ د خپلې قربانۍ څخه خوراک مستحب دی پخپله یې دې وخوري او په خلکو یې دې خوري صدقه یې دې کړي .

⇦ غوره خبره داده چې په د ریو برخو یې تقسیم کړي ۱. یوه برخه به خپلو مېلمنو ته وساتي ۲. یوه برخه به په غریبانو تقسیم کړي ۳. یوه برخه به ځان ته کېږي دا صرف مستحب کار دی او که څوک ټوله خیرات کړي هم صحیح ده او که ټوله خپل کورته کیږدي هم قرباني ورسره نه خرابیږي.

⇦ هغه څوک چې غریب وي او اولاد یې ډېر وي د هغه په حق کې دا غوره ده چې ټوله غوښه خپلو ماشومانو ته پریږدي او هغوی پرې ماړه کړي . (عالمګیري/ البدائع)

⇦ او هغه چې په نذر يې منلي وي د هغه قرباني څخه به دی خوراک نه کوي هغه به ټوله خيرات او مالدار ته به يې نه ورکوي صرف په غريبانو به يې تقسيم کوي (النهاية)

⇦ د قرباني د مال ښه خدمت کول او د هغه ښائسته کول هم مستحب دي .

⇦ د قرباني ځای ته چې مال بيايي په ارام او مينه سره يې بول مستحب دي .

⇦ د قربانۍ د مال څرمن ، وړی ، هډوکي، د غاړې پړی او چې هرڅه د خوراک نه وي او د بل چا د فايدې وړ وي هغه به ټول خيرات کړي.

⇦ که د قربانۍ مال شودې کوي نو هغه به هم نه خوري همدارنګه که يې وړی ترې وشکولې دا هرشی به خيرات کوي. (الظهيرية)

⇦ غوره خبره داده چې شودې ترېنه بالکل ونه لوشي او که د مال غولانځ ډکه وه او مال ته يې تکليف ورکولو نو بيا دې غولانځ ته يخې اوبه ور شني پدې سره به ورو ورو مال وچ شي بيا به پکې نورې شودې نه را پيدا کيږي همدارنګه د مال نه نوره فايده اخستل لکه کار پرې کول او يا ورباندې سپريدل دا ټول مکروه دي.

⇦ که د قربانۍ په مال يې کار کولو په هغه کې څه عيب راغلو چې په هغې سره يې قيمت کمېدلو نو اندازه به يې معلومه کړي چې څومره يې قيمت کم شوی وي هغه به خيرات کړي او که يې

چاته په کرایه ورکړه هغه پیسې به یې هم خیرات کوي.

⇦ که داسې مال یې واخیست چې هغه شودې کولې او هغه یې خرڅې کړې څومره روپۍ یې چې پرې ګټلې دا به ټولې خیرات کړي همدارنګه که یې خوشایه (د مال ګندګي) ترېنه خرڅ کړي وو هغه پیسې به هم خیرات کوي دا په هغه صورت کې چې هغه په دښته کې په خپله څرېدله او که ده په کور کې ګیاه ورکوله نو بیا یې د شودو ګټه همدارنګه که یې خوشایه ترې خرڅ کړي وو هغه پیسې دده دي.

⇦ که د قربانۍ د مال د څرمن نه یې داسې کوم شی جوړ کړل چې هغه په کور کې استعمالېدل نو روا ده او که یې دا شی چاته په کرایه ورکړل نو نه ده روا. (عالمګیري)

⇦ د قربانۍ د څاروي هېڅ شی به نه خرڅول کیږي لکه هډوکي، څرمن، وړی او داسې نور او که خرڅ کړل شي نو قېمت به یې خیرات کول کیږي. (عالمګیري)

⇦ که د قرباني دمال د پاره یې قصاب راوستلو د قصاب په مزدوری کې به هغه ته غوښه نه ورکوي.

# د ذی الحجې په لسو ورځو کې نوکان او وېښتان نه پرې کول

⇦ هغه څوک چې قرباني کول غواړي نو چې کله د اختر میاشت را داخله شي هغه به د اختر تر ورځ پورې خپل نوکان نه پرې کوي او نه به خپل وېښتان اخلي دا مکروه دي او که څوک یې قطع هم کړي څه جرمانه وربانډې نشته .

پدې اړه په صحیح مسلم کې د حضرت ام سلمة رضی الله تعالی عنها څخه روایت شوی دی چې رسول الله ♈ فرمایي :

کله چې تاسې میاشت ولیده د ذی الحجې او په تاسې کې چا د قربانۍ اراده کړې وه نو هغه د د وېښتانو او نوکانو څخه ځان وساتي (نه یې دې پرې کوې) (صحیح مسلم)

⇦ د نوکانو پرې کول قطع کول اخستل دا هرڅه مکروه دي او هغه کس چې قرباني کول یې اراده وي باید مخکې د مېاشتې د را شروع کېدو نه باید د خپلو نوکانو د اخستلو نه ځان خلاص کړي او د وېښتانو د اخستلو څخه د ځان ساتلو مطلب دادی چې په بدن چې هرڅومره وېښتان دي که د سر دي که د نور بدن دي نه به یې پرې کوي او نه به یې لنډوي او نه به یې پاک خریي (کلوي)

## صحابه کرامو به هم خلکو ته ددې نصیحت کولو

امام ابن حزم د ابن کثیر نه روایت کړ دی چې یحیی بن یعمر به په خراسان کې خلکو ته فتوی ورکوله چا چې د قربانۍ کولو اراده کړي وي او یا یې څاروی اخستی وي چې کله د ذی الحجې میاشت را داخله شي ترڅو یې چې قرباني نه وي کړې نو ویښتان او نوکان د نه پرې کوي .

حضرت قتادة رحمه الله فرمایي ما دا خبره د حضرت سعید بن مسیب رحمه الله په مخ کې وکوله .

هغه راته وویل : هو ... (همدا صحیح ده)

ما ورته وویل : دا له چا څخه راغلي چې قرباني کونکی به د ذی الحجې په اولو لسو کې نوکان او ویښتان نه پرې کوي؟

ده راته وویل : د رسول الله ♈ له صحابه وو څخه .

امام مسلم رحمه الله د عمرو بن مسلم اللیثي نه روایت کوي چې هغه ویل :

مونږ د لوی اختر نه لږ وړاندې په یو حمام کې وو هلته ځینې خلکو د بدن د ښکته برخو ویښته لرې کول شروع کړل ځینې نورو خلکو ورته وویل چې دا مه کوئ هغه کسان چې قرباني کول غواړي نو هغه امام سعید بن مسیب رحمه الله منع کوي چې د ذی الحجې په لسو شپو کې د خپل بدن ویښته یا پرې کړي او یا یې وخریي.

زما چې کله د حضرت سعید رحمه الله سره ملاقات وشو نو ددې واقعې ذکر مې ورته وکولو ده راته وویل

: وراره دا يو حديث دى ماته د رسول الله ♈ مېرمن ام سلمة ويلى وو خو اوس له خلكو هېر دى او څوک وربانديې عمل نه كوي .

# دذبح ادبونه

رسول الله ♈ مونږ ته فرمايي : الله تعالى په هرشي کې نيکي کول فرض کړي دي کله مو چې يو شى قتل كول نيكي ورسره وكوئ ( په اسانه طريقه سره يې قتل كړئ) او كله مو چې يو شى ذبح كول په ښه طريقه سره يې ذبح کړئ په تاسې کې چې څوك ذبح كوي هغه دې خپله چاړه ډېره تېره كړي ، كوم شى چې حلالوي هغې ته دې راحت وركړي )
د ذبح لپاره هم يو څه ادبونه دي چې ستاسې فام ورته را اړوم :

☚ د ذبح لپاره بايد تېره شى استعمال كړل شي :
ترڅو پورې چې ممکن وي بايد چاړه دومره تېره كړل شي او بايد هرشى چې دذبح لپاه استعماليږي كه چاړه او كه توره او كه بل شى بايد دوسپنې وي لكه رسول الله ♈ چې په پورتني حديث كې فرمايل : چې هغه شى چې تاسې يې حلالوئ هغه ته راحت وركړئ

☚ ذبح زر زر کول:
ذبح کونکی به کوشش کوي چې ذبح ډېره زر زر وکوي پدې سره مذبوحې ته راحت رسیږي او دهغې دمه به زر زر ووزي .

☚ ذبح کونکی به خپل مخ قبلې ته کوي :
او د حیوان په کوم ځای چې چاړه را کش کوي هغه به هم قبلې ته سیده وي او مخ یې که له قبلې څخه بل طرف ته وي نو خیر دی .
حضرت ابن عمر رضی الله تعالی عنه به ښه نه ګڼله چې دهغه مال غوښه وخوري چې هغه د ذبح په وخت کې قبلې ته مخامخ نه وي او په صحابه وو کې یې هیچا مخالفت هم نه کولو او نه چا ورباندې رد کولو امام ابن سیرین او جابر بن زید ددې تائید کړی دی .

☚ چاړه له مخکې نه تېرول :
ذبح کونکی به چاړه مخکې له دې څخه تېروي چې حیوان را چپه کړي دا د حنفي ، مالکي او شافعي مذهب په کتابونو کې هم ذکر کړل شوېده او ټولو پدې اتفاق کړی دی چې کله حیوان را چپه کړل شي د هغه څخه وروسته چاړه تېرول مکروه دي حضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنه فرمایي : یو سړي پسه را چپه کړی وو او ده ورته چاړه تېروله رسول الله ﷺ ورته وویل : آیا ته غواړي چې په مرګونو باندې ي مړ کړ ي ؟

ولې دې چاړه د هغه د چپه کولو څخه وړاندې نه تېرولـه .

خو دا ټول ادبونه مراعات کول مستحب دي او ددې په پاتې کېدلو باندې هغه غوښه نه مرداريږي .

☚ حيوان په چپ طرف باندې څملول :

د ذبح لپاره به حيوان داسې څملول کيږي چې په چپ طرف باندې وي امام نووي رحمه الله ددې حکمت ويلې دی زه دهغه خبره تاسې ته نقل کوم :

امام نووي رحمه الله فرمايي : پدې اړه حديثونه راغلي دي چې حيوان بايد د ذبح لپاره په چپه طرف څملول شي او مسلمانانو پدې باندې اجماع کړېده او علماوو پدې باندې اتفاق کړی دی چې بايد حيوان د ذبح لپاره په چپه طرف باندې څملول شي ځکه د ذبح کونکي لپاره اسانه وي چې په ښي لاس باندې چاړه ونيسي او په چپ لاس دهغه حيوان سر ونيسي خو دا صرف په پسه (ګډ) کې صحيح کېدلی شي چې ذبح کونکی يې سر پخپله ونيسي او بيا جمهورو علماوو ټولې ذبحې په همدې باندې قياس کړي دي اګر که په هغوی کې حلالونکی د حيوان سر پخپله نه نيسي .

☚ دحلالولو څخه وړاندې د حيوان سره نرمي کول :

کله چې حیوان د حلالولو ځای ته بو ول کیږي باید له هغه سره ډېره نرمي وشي او هغه په زور زور سره را کش نه کړل شي او نه هغه ته وهل ورکړل شي او نه کوم بل عذاب ورکړل شي بلکه باید له هغه سره دمکملې نرمۍ څخه کار واخستل شي .

☚ اوبه ورکول :

دحلالولو څخه وړاندې که حیوان تږی وي که هغه ته اوبه کیښودل شي نو ښه خبره ده دا هم په حیوان باندې یو قسم رحم کول دي په کوم باندې چې مونږ ته شریعت په بیا بیا امر کوي .

☚ د ذبح په وخت کې دعا ویل :

که دا حلاله د ثواب لپاره وي لکه خیرات او یا د لوی اختر قرباني وي نو حلالونکی به د بسم الله نه وړاندې درې ځله الله اکبر وایي او درې ځله به ترې وروسته وایي او بیا به وایي اللهم هذا منك وإليك فتقبله مني

☚ ذبح په ښي لاس سره کول:

ترڅو پورې چې ممکنه وي ذبح به صرف په ښي لاس سره کیږي او که حلالونکی د ښي لاس څخه معذور وو نو بیا خیر دی .

☚ حیوان چې مکمل مړ شوی نه وي بیا کار پرې نه کول:

کله چې حیوان حلال کړل شي بیا به تر هغه وخته پورې ورته صبر کوي چې هغه مکمل یخ شي او په مکمله توګه باندې دمه ترې ووزي او ترڅو چې دمه ترې نه وي وتلې بیا به یې په پوستکي ویستلو او یا نور کار باندې شروع نه کوي ځکه پدې کې حیوان ته داسې اضافي تکلیف ورکول دي چې ضرورت ورته نشته .

دحضرت ابن عباس رضی الله تعالی عنه په یو حدیث کې دي چې رسول الله ﷺ ددې څخه منع کړېده چې ترڅو پورې د حیوان دمه نه وي ختلې څوك یې مرۍ پرې ماته کړي .

# (نفلي صدقه) خيرات

فضائل ، قسمونه او اړوند مسئلې .

په قران كريم كې الله ① تعالى رسول الله ♈ ته فرمايي :

سورت ابراهيم آية ٣١

قُل لِّعِبَادِيَ الَّذِينَ آمَنُواْ يُقِيمُواْ الصَّلاَةَ وَيُنفِقُواْ مِمَّا رَزَقْنَاهُمْ سِرّاً وَعَلانِيَةً مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ لاَّ بَيْعٌ فِيهِ وَلاَ خِلاَلٌ

ترجمه : ووايه (اى محمده) هغو بندګانو زما ته چې ايمان يې راوړى دى چې سم د دروي (اداء كړي) مونځ او وركړه د كوي ځينې له هغه ماله چې وركړى دى مونږ دوى ته په پټه (كه مستحب وو) او په ښكاره (كه فرض يا واجب وو) پخوا له راتلو د هغه ورځې چې په هغې كې نشته سودا ، اخستل او خرڅول.

په بل ځاى كې الله ① فرمايي :

سورة بقرة آية ١٩٥

وَأَنفِقُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَلَا تُلۡقُواْ بِأَيۡدِيكُمۡ إِلَى ٱلتَّهۡلُكَةِ وَأَحۡسِنُوٓاْۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلۡمُحۡسِنِينَ ١٩٥

ترجمه : او صرف کوئ (مالونه خپل) په لاره د الله ﷻ کې او مه غورځوئ ځانونه خپل په هلاکت کې (چې جهاد ونه کوئ او خپل مالونه په جهاد کې مصرف نه کړئ) او نیکي کوئ (له هرچا سره مخصوصاً له غازیانو سره) بېشکه الله ﷻ دوستي کوي له نیکو کارانو سره (چې ثواب ورکوي دوی ته.

په بل ځای کې فرمایي :

سورة بقرة آية ٢٥٤

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَنفِقُواْ مِمَّا رَزَقۡنَٰكُم مِّن قَبۡلِ أَن يَأۡتِيَ يَوۡمٞ لَّا بَيۡعٞ فِيهِ وَلَا خُلَّةٞ وَلَا شَفَٰعَةٞۗ وَٱلۡكَٰفِرُونَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ ٢٥٤

ترجمه : ای هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی (یعني ای مؤمنانو!) صرف کړئ (په زکات یا په جهاد یا په نورو واجبي صدقاتو کې) ځینې له

هغه مالونو څخه چې درکړي دي مونږ تاسې ته پخوا د راتلو د هغه ورځې نه چې نه اخستل او نه خرڅول پکې شته (چې سړی مال پیدا کړي او بیا پرې ځان د عذاب نه خلاص کړي) او نه دوستي او نه شفاعت (بې د اجازې د الله) .

په بل ځای کې فرمايي :
سورة بقرة آية ٢٦٧

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَنفِقُواْ مِن طَيِّبَٰتِ مَا كَسَبۡتُمۡ وَمِمَّآ أَخۡرَجۡنَا لَكُم مِّنَ ٱلۡأَرۡضِۖ وَلَا تَيَمَّمُواْ ٱلۡخَبِيثَ مِنۡهُ تُنفِقُونَ وَلَسۡتُم بِـَٔاخِذِيهِ إِلَّآ أَن تُغۡمِضُواْ فِيهِۚ وَٱعۡلَمُوٓاْ أَنَّ ٱللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ٢٦٧

ترجمه : ای مؤمنانو لګوئ له حلالو (پاکو، غورو) د هغه مالونو چې (په کسب سره )تاسې ګټلي او له هغو (شیانو) چې ا یستلي دي مونږ تاسې لره له زمکې نه (له حلالو پاکو غوره شیانو) او قصد مه کوئ تاسی (ورکولو) د خبیثو (حرامو نا بودو شیانو) له هغه ماله چې لګوئ ئې تاسی (د الله ① په لاره کې ) حال دا چې نه یئ

تاسې اخيستونكي د هغه (ناكاره شي په خپل حق كې) مگر (خو ئې داسې اخلئ) چې سترگې پټې كړئ په (اخيستو د) هغه كې او پوه شئ چې بېشكه الله ﷻ غني دى بې پروا له هر چا او هرشي ورته تل ښه ستاينه (صفت) او ثناء ويلى شوې.

په بل ځاى كې فرمايي :

سورة التغابن آية ١٦

فَاتَّقُوا اللَّهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ وَاسْمَعُوا وَأَطِيعُوا وَأَنفِقُوا خَيْراً لِّأَنفُسِكُمْ وَمَن يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُوْلَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ

ترجمه : نو وېرېږئ تاسې له الله ﷻ څومره چې مو وسي وي واورئ خبرې د الله ﷻ (په سماع د قبول سره) او اطاعت وكوئ (د احكام الله) او نفقه كوئ لگوئ ښه شيان د پاره د (نفعې) د ځانونو خپلو او هغه چې وساتل شو له حرص بخيلي د نفس خپل څخه نو دا كسان هم دوى دي بريااليان (كامياب) په مراد رسيدلي.

په صحيح مسلم او بخاري كې حديث دى رسول الله ﷺ فرمايي :

فاتقوا النار ولو بشق تمرة

يعني د اور نه ځان وساتئ اگر كه په وركولو د يوې حصې د يوې خورما سره هم وي.

## د خيرات فائدي

۱. په خيرات وركولو سره د الله ① قهر سړيږي .

رسول الله ﷺ فرمايي : **إن صدقة السر تطفىء غضب الرب تبارك وتعالى**

**( صحيح الترغيب).**

يعني : په پټه سره صدقه (خيرات) وركول د رب تعالى غصه سړوي.

۲. گناهونه پاكوي.

رسول الله ﷺ فرمايي : **والصدقة تطفىء الخطيئة كما تطفىء الماء النار ( صحيح الترغيب).**

يعني : صدقه گناه داسې غلې كوي او ختموي لكه اور چې اوبه گل كوي .

۳. د اور نه انسان ساتي.

لكه لږ مخكې چې تېر شول رسول الله ﷺ فرمايي : فاتقوا النار، ولو بشق تمرة (صحيح بخاري او مسلم )

ترجمه : د اور نه ځان وساتئ اگر كه په وركولو د يوې برخې د خورما سره هم وي.

٤. د قيامت په ورځ انسان ته سيورى كوي.

رسول الله ﷺ فرمايي : **كل امرىء في ظل صدقته، حتى يُقضى بين الناس (صحيحين)**

ترجمه : د قيامت په ورځ به هر انسان د خپلې صدقې (خيرات) تر سيوري لاندې وي تردې چې د خلكو په مينځ كې فيصله وشي.

٥. د انسان د بدن نه بیماري ورسره ختمیږي .

رسول الله ﷺ فرمایي : **داووا مرضاکم بالصدقة**

ترجمه : خپلو بیمارانو ته په صدقه (خیرات) سره علاج وکوئ.

ابن شقیق رحمه الله پدې اړه فرمایي : ابن مبارک صاحب ته څوک راغلل د هغه دانې شکایت یې ورته وکولو چې په زنګون یې راختلې وه او ویل یې چې ډېر وخت مې علاجونه وکول لکن هېڅ دوا وربانديې اثر نه کوي ده مبارک ورته وویل څه لاړ شه پداسې ځای کې یو کوهی وباسه چې هلته ورته دخلکو ضرورت وي چې هلته اوبه را وخیږي زما امید دی چې ستا د دانې نه به د وینې وتل بند شي بیا هغه کس همداسې وکول او دانه یې وچه شوه. (صحیح الترغیب)

٦. پدې سره د زړه د بیماریانو علاج کیږي.

رسول الله ﷺ هغه کس ته وویل چې د زړه د سخت والې نه یې شکایت کاوه :

**اذا إردت تليين قلبك فأطعم المسكين، وامسح على رأس اليتيم (رواه أحمد).**

ترجمه : کله د چې غوښتل زړه د نرم کړې نو مسکینانو ته طعام ورکوه د یتیم په سر لاس را کش کړه .

٧. په صدقه سره الله ① انسان له بلا ګانو څخه ژغوري .

حضرت يحی عليه السلام بني اسرائيلو ته نصيحت کولو او ورته ويل يې:

وآمركم بالصدقة، فإن مثل ذلك رجل أسره العدو فأوثقوا يده إلى عنقه، وقدموه ليضربوا عنقه فقال: أنا أفتدي منكم بالقليل والكثير، ففدى نفسه منهم . (الجامع الصحيح)

ترجمه : زه تاسې ته امر کوم چې صدقه ورکړئ بېشکه د صدقې ورکولو مثال داسې دی لکه يو کس چې دده دښمنان يې ونيسي او دده لاسونه دده د غاړې سره وتړي او توره راوړي او اوس وربانديې دده سر وهل غواړي نو دی ورته ووايي چې زه تاسې ته لږ او زيات څه شی چې وي درکوم يې بيا هغوی ته څه مال ورکړي او ځان ورڅخه خلاص کړي.

۸. انسان په صدقه سره رښتونې نيکی ته رسيږي.

الله تعالی فرمايي :

سورة آل عمران آية ۹۲

لَن تَنَالُواْ ٱلۡبِرَّ حَتَّىٰ تُنفِقُواْ مِمَّا تُحِبُّونَۚ وَمَا تُنفِقُواْ مِن شَيۡءٖ فَإِنَّ ٱللَّهَ بِهِۦ عَلِيمٞ ﴿٩٢﴾

ترجمه : له سره به ونه مومئ تاسې (پوره) نيکي تر هغه پورې چې صرف نه کړئ تاسې (په لاره د الله ① کې) ځينې له هغه شيانو چې ستاسې خوښ وي او هغه چې صرفوئ (ئې) تاسې له يوه شي (لږ وي

که ډېر وي) بېشکه الله ① په هغه (هم) ښه عالم دی.

۹. هغه څوک چې صدقه کوي ملائکې ورته دعا کوي.
ملائکې هغه کس ته دعا کوي چې هغه صدقه (خیرات) ورکوي او هغه کس چې نه یې ورکوي هغه ته ملائکې دعا نه کوي رسول الله ♈ فرمايي :
**ما من يوم يصبح العباد فيه إلا ملكان ينزلان فيقول أحدهما: اللهم أعط منفقاً خلفاً، ويقول الآخر: اللهم أعط ممسكاً تلفاً . (الصحيحين)**
ترجمه : هره ورځ دوه ملائکې را ښکته کیږي هغه یوه وايي ای الله ① څوک چې نفقه او مصرف کوي هغه ته عوض ورکړه او هغه چې خرچ نه کوي دهغه مال تلف او نقصان کړه .
۱۰. په مال کې برکت راولي.
هغه څوک چې صدقه (خیرات) ورکوي دهغه په مال کې برکت راځي رسول الله ♈ پدې اړه فرمايي : **ما نقصت صدقة من مال (صحيح مسلم)**
یعني د خیرات په ورکولو سره مال نه کمیږي.
۱۱. صرف همدا مال انسان ته فایده کوي.
په رښتیا کې صرف هغه مال انسان ته په لاس ورځي او په ګټه ورځي چې دی یې صدقه او خیرات کړي پدې اړه الله ① فرمايي :
سورة البقرة آية ۲۷۲

وَمَا تُنفِقُواْ مِنۡ خَيۡرٍ فَلِأَنفُسِكُمۡۚ وَمَا تُنفِقُونَ إِلَّا ٱبۡتِغَآءَ وَجۡهِ ٱللَّهِۚ وَمَا تُنفِقُواْ مِنۡ خَيۡرٍ يُوَفَّ إِلَيۡكُمۡ وَأَنتُمۡ لَا تُظۡلَمُونَ ﴿٢٧٢﴾

ترجمه : او هغه څه چې صرف کوئ یې تاسې له خیره (له مال نه) پس لپاره د نفسونو (ځانونو) ستاسې دي او نه صرف کوئ تاسې (ای مؤمنانو) مګر (صرف کوئ یې) خاص د پاره د طلب د رضا د الله ① او هر هغه شی چې صرفوئ (ئې) تاسې له خیره (له مال نه) نو پوره به درکړل شي تاسی ته (ثواب د هغه) او په تاسې به ظلم ونه کړل شي (د ثواب په کموالي سره)

یوه ورځ چې د رسول الله ﷺ په کور کې پسه حلال شوی وو رسول الله ﷺ د حضرت عائشې رضی الله عنها نه دهغه پسه په اړه پوښتنه وکوله چې څنګه شو هغې مبارکې ورته وویل : ما بقی منها إلا كتفها (یعني صرف یوه اوږه یې پاتې ده) پدې معنی چې نور ټول خیرات کړل شو رسول الله ﷺ ورته و فرمایل : بقي كلها غير كتفها (یعني د یوې اوږې نه بغیر نور ټول پاتې دی) پدې معنی چې

اصلی پاتې خو هماغه دی چې په خیرات کې تللی دی . ( صحیح مسلم )

۱۲. ثواب یې دوه چنده کیږي.

هغه څوک چې صدقه (خیرات) ورکوي الله ① هغه ته څو چنده زیات ثواب ورکوي پدې اړه الله ① فرمایي :

سورة الحديد آية ١٨

إِنَّ الْمُصَّدِّقِينَ وَالْمُصَّدِّقَاتِ وَأَقْرَضُوا اللَّهَ قَرْضاً حَسَناً يُضَاعَفُ لَهُمْ وَلَهُمْ أَجْرٌ كَرِيمٌ ترجمه : بېشکه خيرات ورکونکي سړي او خيرات ورکونکې ښځې او هغه څوک چې قرضونه يې کړي دي له الله ① سره قرض نېک دوه چنده به کړل شي دوی ته (ثواب د قرض د هغوی) او وي به دوی ته اجر ثواب ډېر لوی (چې جنت دی) .

په بل ځای کې الله ① فرمايي :

سورة البقرة آية ٢٤٥

مَّن ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللَّهَ قَرْضاً حَسَناً فَيُضَاعِفَهُ لَهُ أَضْعَافاً كَثِيرَةً وَاللَّهُ يَقْبِضُ وَيَبْسُطُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ

ترجمه : څوک دی هغه سړی چې قرض ورکوي الله ① ته قرض نېک (د زړه د اخلاصه د الله ① په لاره کې د صرفولو سره) نو زيات به کړي الله ① (ثواب د) قرض ده لره په زياتوالی ډېر او الله ① تنګوي (رزق) او فراخوي (رزق) او هم (خاص) ده ته به بيا تاسې ورګرځول کيږئ (د اعمالو د جزاء لپاره) .

١٣. خيرات کونکي به له خاصې دروازې جنت ته ننوزي.

هغه کسان چې صدقه (خيرات) ورکوي هغوی به له يوې خاصې دروازې نه جنت ته ننوزي چې باب

الصدقه ورته ویل کیږي د حضرت ابي هریره ❼ نه روایت دی رسول الله ♈ فرمایي :

**فمن كان من أهل الصلاة دُعي من باب الصلاة، ومن كان من أهل الجهاد دُعي من باب الجهاد، ومن كان من أهل الصدقة دُعي من باب الصدقة، ومن كان من أهل الصيام دُعي من باب الريان**

ترجمه : څوک چې د مانځه له اهل نه وي هغوی به د مانځه له دروازې ور غوښتل کیږي ، څوک چې د جهاد له اهل نه وي هغوی به د جهاد له د روازې ور غوښتل کیږي څوک چې د صدقې د اهل نه وي هغوی به د صدقې له دروازې څخه ور غوښتل کیږي او څوک چې د روژو واله وي هغوی به د باب الریان څخه ور غوښتل کیږي . (الصحیحین)

۱٤. که چېرته صدقه کونکی عالم وي د الله ① په نېز دا لوړه مرتبه لري .

پدې اړه رسول الله ♈ فرمایي : بېشکه دنیا د څلورو کسانو لپاره ده :

یو هغه کس دی چې الله ① ورته علم او مال ورکړی وي دی په هغې کې د الله ① نه ډاریږي او د خپلوانو خپلولي ساتي او د الله حقوق پکې پېژني دا د الله ① په وړاندې په بهترین مقام کې دی .... (الحدیث)

١٤. مال د خيرات سره داسې دی لکه قران له قيام سره .

رسول الله ♈ په يو حديث کې دوه کسان سره برابر کړي دي هغه کس چې مال ورسره وي او دهغه نه صدقه کوي دا يې د هغه کس سره برابر کړی دی چې قران يې په ياد وي او د هغه سره د شپې قيام کوي رسول الله ♈ فرمايي :

له يو بل سره کينه (د ځان د برابرولو کوښښ) نشته مګر په دوو شيانو کې ده .

يو هغه کس چې الله ① ورته قران ورکړی وي او هغه د شپې ورځې په هغه سره قيام کوي او بل هغه کس چې الله ① ورته مال ورکړی وي او هغه يې د شپې او ورځې خيرات کوي .

١٥. پدې سره انسان دده او د الله ① په منځ کې کړې وعده پوره کوي.

هغه کس چې صدقه ورکړي دا د هغه کسانو په جمله کې راځي چې دده او د الله ① په منځ کې کړې وعده يې پوره کړې وي الله ① دې خبرې ته په خپل مقدس کتاب کې اشاره کړېده الله ① فرمايي :

سورة التوبة آية ١١١

إِنَّ اللهَ اشْتَرَى مِنَ المُؤمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَ لَهُمُ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُونَ فِى سَبِيلِ اللهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقتَلُونَ وَعداً عَلَيْهِ حَقّاً فِى

التَّورَاةِ وَالإِنجِيلِ وَالقُرءَانِ وَمَنْ أَوفَى بِعَهدِهِ مِنَ اللهِ فَاستَبشِرُواْ بِبَيعِكُمُ الَّذِى بَايَعتُم بِهِ وَذَلِكَ هُوَ الفَوزُ العَظِيمُ.

ترجمه : بېشکه الله ① اخيستي د مؤمنانو څخه ددوی ځانونه او مالونه د دوی ددې لپاره چې د دوی لپاره جنت دی دغه اخيستل پدې شان دي چې جنګونه کوي دوی په لاره د الله ① کې کله دا مؤمنان کفار وژني او کله (د کفارو له لوري) وژل کيږي د مؤمنانو لپاره په الله ① باندې وعده ده حقه په تورات او انجيل کې او په قران کې او څوک دي ښه وفا کونکي په وعدې خپلې سره له الله ① څخه (بلکه هېڅوک نشته) نو خوشاله شئ تاسې (ای مؤمنانو) په بيع ستاسې باندې هغه چې معامله کړېده تاسې له الله ① سره په هغې بيع او شرى سره او همدا بيع لويه کاميابي ده.

١٦. صدقه د انسان په ايمان دليل دی

رسول الله ﷺ پدې اړه فرمايي : **والصدقة برهان** (صدقه يو دليل دی) (رواه مسلم)

١٧. صدقه د مال پاکونکې ده .

په صدقه سره مال دهغه شيانو ګندګيو څخه پاکيږي چې په اخستلو او خرڅولو کې وربانديې ګنده شوی وي رسول الله ﷺ تجارانو ته په خپل وصيت کې فرمايي :

يا معشر التجار، إنَّ هذا البيع يحضره اللغو والحلف فشوبوه بالصدقة (احمد، النسائي، ابن ماجة)

ترجمه : اى تجارانو ددې مالونو سره بې ځایه خبرې (مبالغه په صفاتو کې او داسې نور) او قسمونه کیږي دا په خیرات سره وویني.

په صدقه (خیرات) ورکولو کې نورې هم داسې ډېرې فایدې دي ما یې دلته یو څو مشت نمونه خروار ستاسې مخې ته کېښودې .

کومه صدقه (خیرات) ډېر غوره دی؟

۱. پټه صدقه

هغه صدقه چې پټه ورکړل شي تر هغه صدقې (خیرات) څخه غوره ده چې هغه په ښکاره سره ورکول کیږي پدې اړه الله ① فرمایي :

سورة البقرة آية ۲۷۱

إِن تُبْدُواْ الصَّدَقَاتِ فَنِعِمَّا هِيَ وَإِن تُخْفُوهَا وَتُؤْتُوهَا الْفُقَرَاءِ فَهُوَ خَيرٌ لَّكُمْ

ترجمه : که په ښکاره ډول سره خیراتونه کوئ نو ښه کار دی (ښکاره کول) او که پټوئ یې (د ورکولو په وخت کې) او ورکوئ یې فقیرانو ته (دا پټ ورکول بهتر او) خیر دی تاسې ته او لرې به کړي الله ① لتاسې نه ځینې د ګناهونو ستاسې او الله ① په هغه کارونو چې کوئ یې تاسې ښه خبردار دی (او هیڅ شی ترې پټ نه دي) .

⇦ په آيت کې الله ① وفرمايل چې که يې ښکاره ورکړئ هم ښه ده لکن که يې پټه ورکړئ دا ستاسې لپاره غوره ده يعني کله داسې صورتونه وي چې هلته صدقه نشي پټېدلی لکه د ضرورت په ځای کې کوهی وېستل ، جومات جوړول، د اسلامي لښکر د جهاد لپاره برابرول او داسې نور لوی کارونه پټ نشي کېدلی لکن چې کوم کارونه پټ کېدلی شي لکه له کوم غريب سره مالي مرسته کول او داسې نور نو ښه خبره ده .

۲. پداسې حالت کې صدقه ورکول غوره دي چې انسان په خپله جوړ وي دا له هغه صدقې څخه غوره ده چې انسان يې په داسې وخت کې کوي چې هغه ناروغ وي او يا د مرګ په بستر پروت وي پدې اړه رسول الله ﷺ فرمايي :

⇦ غوره صدقه هغه ده چې پداسې حالت کې يې ورکړې چې ته روغ او جوړ وې د غريبې نه ډارېږې (بيا هم ته صدقه ورکوې) ددې انتظار مه وکاږه چې ستا روح وتلو ته نږدې شي بيا وايې چې فلانې ته دومره ورکړئ او فلاني ته دومره ورکړي ... (متفق عليه)

۳. غوره صدقه (خيرات) هغه دی چې څومره ستا وس وي دومره وکړې اګر که هغه لږ وي يعني که ته د سلو روپيو مالک وې او ددېنه ته ۵۰ صدقه کړې دا ډېره غوره ده رسول الله ﷺ پدې اړه وفرمايل :

یو درهم په ثواب کې تر یو لک درهمونو څخه وړاندې شو.

صحابه وو 📖 ورځخه پوښتنه وکوله څنګه؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :

**كان لرجل درهمان تصدق بأحدهما، وانطلق رجل إلى عرض ماله، فأخذ منه مائة ألف درهم فتصدق بها (رواه النسائي، صحيح الجامع)**

د یو سړي په لاس کې صرف دوه درهمه وو یو یې ځنې خیرات کړو بل سړی خپل مال ته ورغلو او دهغه نه یې یوه برخه را واخیسته چې هغه سل زره (یو لک) درهمه وو.

نو هغه کس چې یو درهم خیرات کړو ده پدې وخت کې د خپلې ټولې سرمایې نیمه برخه خیرات کړه او هغه بل کس د خپل مال یوه ځومه برخه خیرات کړه .

امام بغوي رحمه الله فرمایي هغه ځوک چې صدقه کول غواړي نو ښه خبره داده چې هغه مال خیرات کړي چې دده اوس ورته لاس نه بندیږي او داسې د نه کوي چې څه ورسره وي ټول خیرات کړي چې یو څه وخت وروسته وربانديې پښېمانه وي پدې پښېماني سره دده ټول اجرضائع کیږي او یا بیا دې ته اړ کیږي چې د خلکو نه سوال وکوي او په بل چا باندې تاوان شي کله چې د تبوک د جنګ لپاره د چندې اعلان وشو نو حضرت ابو بکر صدیق ❼ خپل

ټول مال را وویستلو او رسول الله ﷺ ته یې په مخه کې کېښودو او رسول الله ﷺ هغه ته ونه ویل چې ټول مال مه خیرات کوه ځکه رسول الله ﷺ ته د ابو بکر صدیق کلک ایمان اوربشتونی توکل معلوم وو .

⇦ که په کور کې یې سخت ضرورتونه وي او خپل عیال یې وږی وي او یا وربانديې قرض وي او دی خیرات ورکوي نو دده لپاره غوره ده چې اول خپل حاجتونه او خپل قرضونه خلاص کړي بیا خیرات وکوي.

⇦ او که یو صورت داسې وو چې خیرات ورکونکی په صبر کې داسې ځای ته رسېدلی وو چې په هر حالت یې صبر کولی شوی او ددې قوت پکې وو چې د هر تکلیف مقابله په صبر سره وکوي نو دا بیا د هغه آیت مصداق کېدلی شي چې الله ① فرمایي :

سورت الحشرت آیة ٩

وَيُؤْثِرُونَ عَلَى أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ

ترجمه : او غوره کوي (مهاجران) مقدموي پر خپلو ځانونو او اګر که وي په دوی باندې تنګي .

٤. صدقه د ضروري کارونو وروسته وي.

که د انسان په ذمه باندې کوم واجب مال او یا د چا قرض وي نو اول به هغه پوره کوي بیا به

خيراتونه ورکوي او هغه صدقه هم غوره صدقه ده چې د واجباتو او لازمو شيانو د پوره کولو وروسته ورکړل شي الله ① فرمايي :
سورة البقرة آية ٢١٩
وَيَسْئَلُونَكَ مَاذَا يُنفِقُونَ قُلِ العَفْوَ

ترجمه : او پوښتنه کوي دی لتا څخه ای محمده چې څومره صرف کړي دوی (په لاره د الله ① کې) ووايه ته ای محمده دوی ته صرف کړئ هغه چې وي زيات ستاسې له خرڅ نه .

٥. په خپلوانو خيرات کول .

⇦ ترڅو چې په خپلوانو کې فقير او مسکين وي نو صدقه کول په هغوی باندې غوره ده .

په مدينه منوره کې حضرت ابو طلحه انصاري ❼ د ښه مال خاوند وو او ده ته په خپل ټول مال کې بيرحاء باغ چې د مسجد نبوي مخې ته وو ګران وو رسول الله ♈ به کله کله ورتلو او هلته موجودې اوبه به يې څښلې حضرت انس ❼ فرمايي کله چې دا آيت نازل شو .
سورة آل عمران آية ٩٢

لَن تَنَالُواْ ٱلۡبِرَّ حَتَّىٰ تُنفِقُواْ مِمَّا تُحِبُّونَۚ وَمَا تُنفِقُواْ مِن شَيۡءٖ فَإِنَّ ٱللَّهَ بِهِۦ عَلِيمٞ ﴿٩٢﴾

ترجمه : له سره به ونه مومئ تاسې (پوره) نیکي تر هغه پورې چې صرف نه کړئ تاسې (په لاره د الله ① کې) ځینې له هغه شیانو چې ستاسې خوښ وي او هغه چې صرفوئ (ئې) تاسې له یوه شي (لږ وي که ډېر وي) بېشکه الله ① په هغه (هم) ښه عالم دی.

حضرت ابو طلحه ❼ رسول الله ♈ ته راغلو ورته یې وویل : یا رسول الله ♈ الله ① په خپل کتاب کې فرمایي **لَن تَنَالُواْ البِر حَتَّى تُنفِقُواْ مِمَّا تُحِبُّونَ** او زما په خپل مال کې ماته بیرحاء باغ ډېر زیات ګران دی او دا د الله ① لپاره زه صدقه کوم او د ثواب تمه یې کوم دا واخله چې څه پرې کوې وربانديې ویې کوه رسول الله ♈ ورته وویل (بخ بخ) یعني واه واه ډېر د ګټې مال دی تا چې څه وویل هغه ما واورېدل خو زما رایه داده چې ته یې په خپلو خپلوانو تقسیم کړه حضرت ابو طلحه ❼ ورته وویل صحیح ده همداسې به وکوم بیا ابو طلحه هغه باغ په خپلوانو او دترونو په زامنو باندې تقسیم کړو. (متفق علیه)

رسول الله ♈ فرمایي : په مسکین باندې مصرف کول صدقه دي او په خپلوان باندې خیرات کول دوه نیکی دي هم صدقه ده او هم د خپلولي پالل دي. (احمد، النسائي، ترمذي، ابن ماجه)

⇦ په خپلوانو کې د هغه کسانو څخه وروسته چې صدقه یې په انسان واجبه وي د دوو کسانو سره مرسته کول ډېر ثواب لري:

١. په خپلوانو کې یتیم .

الله تعالی فرمایي : سورة البلد آیة ١١-١٦

**فَلا اقتَحَمَ العَقَبَةَ (11) وَمَا أدرَاكَ مَا العَقَبَةُ (12) فَكُّ رَقَبَةٍ (13) أَو إِطعَامٌ فِي يَومٍ ذي مَسغَبَةٍ (14) يَتِيماً ذَا مَقرَبَةٍ (15) أَو مِسكِيناً ذَا مَتْرَبةَ**

ترجمه : او تکلیف یې ونه ویستو په ختلو د غونډۍ کې (په مخالفت د نفس کې) او څه شي پوه کړی یې ته چې د غونډۍ ختل څه شی دي؟ عقبه خلاصول د غاړې (ازادول د غلام) دي او یا دا عقبه خوراک ورکول دي په هغه ورځ کې چې خاونده د لوږې وي هغه یتیم ته چې خاوند د خپلوي وي یا غریب ته چې په خاورو ککړ وي .

٢. هغه خپلوان چې لتا سره کینه کوي.

د هغه خپلوان سره هم نیکي کول ډېر ثواب لري چې په زړه کې ستا لپاره دښمني ساتي پدې اړه رسول الله ﷺ فرمایي : غوره صدقه هغه ده چې انسان یې کینه لرونکي خپلوان ته ورکړي (احمد، ابو داود، ترمذي )

٦. همسایه ته صدقه ورکول

د خپلوانو څخه وروسته خپلو همسایه ګانو ته هم صدقه ورکول غوره دي الله تعالی فرمای :

سورة النساء آية ٣٦

وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبَى وَالْجَارِ الْجُنُبِ

ترجمه : (او نیکي کوئ) له همسایه ګانو سره چې قریب وي په نسب یا په همسایه توب کې (او نیکي کوئ) له هغه همسایه سره چې له تاسې نه په همسایه توب یا نسب کې لرې وي.

رسول الله ﷺ حضرت ابو ذر ❼ ته نصحیت کولو ورته ویل یې : کله دې چې شوربا پخوله اوبه پکې لږ زیاتې کړه او خپلو ګاونډیانو ته دې ترینه برخه ورکړه (صحیح مسلم)

٧. د الله ① د لارې په ملګري .

په هغه ملګرو باندې هم صدقه کول غوره دي چې هغه صرف د الله ① لپاره ستا ملګري وي او ستاسې په ملګرتیا کې کوم دنیاوي مطلب نه وي پدې اړه رسول الله ﷺ فرمایي :

**أفضل الدنانير: دينار ينفقه الرجل على عياله، ودينار ينفقه الرجل على دابته في سبيل الله، ودينار ينفقه الرجل على أصحابه في سبيل الله عز وجل (رواه مسلم).**

ترجمه : غوره دینارونه هغه دي چې یو انسان یې په خپل عیال مصرف کړي او هغه دینار چې انسان یې په خپله سپرلی د الله ① په لاره کې مصرف کوي او هغه دینار چې انسان یې په هغه ملګرو مصرف کوي چې له ده سره د الله ① په لاره کې ملګري وي .

۸. په جهاد کې مصرف کول.

بل له هغه ځایونو څخه چې نفقه او خیرات کول پکې غوره دي جهاد دی هغه جهاد که د کفارو سره وي که د باغیانو سره او که د منافقینو سره پدې باندې په قران کریم کې په متعددو ځایونو کې تصریح کړیده او په مال سره جهاد یې په ځان سره تر جهاد وړاندې ذکر کړی دی الله ① فرمايي:

سورة التوبة آية ٤١

انفِرُواْ خِفَافاً وَثِقَالاً وَجَاهِدُواْبِأَموَالِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللهِ ذَلِكُمْ خَيرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ

ترجمه : ځئ تاسې (غزا ته) حال دا چې سپک اوسئ او درانه او جهاد کوئ تاسې په مالونو خپلو او په ځانونو خپلو په لاره کې د الله ① (د دين د ترقي لپاره) (دغه تګ غزا ته) خير او غوره دی تاسې ته که تاسې پوهېږئ .

په بل ځای کې الله ① د رښتينو مومنانو صفت کوي او فرمايي :

سورة الحجرات آية ١٥

إِنَّمَا المُؤمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُواْ بِاللهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ لَم يَرتَابُواْ وَجَاهَدُواْ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللهِ أُوْلَئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ

ترجمه : بېشکه چې رښتيني مومنان هغه کسان دي چې ايمان راوړی دوی په الله ① او په رسول د دغه (الله) باندې بيا شک نه کوي (په ايمان کې) او جهاد کوي دوی په مالونو خپلو سره (چې لګوي يې په اعلاء د کلمة الله کې) او په ځانونو خپلو سره چې جهاد کوي په لاره د الله ① کې دا کسان همدوی رښتيني دي (په دعوی د ايمان کې) .

په پل ځای کې الله ① د رسول الله ♈ او د هغه د ملګرو صفت کړی دی فرمايي :

سورة التوبة آية ٨٨-٨٩

لَكِنِ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُواْ مَعَهُ جَاهَدُواْ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ وَأُوْلَئِكَ لَهُمُ الخَيرَاتُ وَأُوْلَئِكَ هُمُ المُفلِحُونَ (88) أَعَدَّ اللّهُ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِى مِن تَحتِهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا ذَلِكَ الْفَوزُ العَظِيمُ

ترجمه : ليكن رسول (د الله) او هغه كسان چې ايمان لرونكي دي له ده سره جهاد يې وكړو په مالونو خپلو او ځانونو خپلو دغه كسان همدوی لره دي فايدې او همدغه كسان دي په مراد رسېدلي تيار كړي دي الله ① دوی ته جنتونه چې بهيږي له لاندې د مانيو او ونو د هغو (ځلور ډوله) ويالې تل به وي دوی په جنتونو كې (دغه ننوتل د جنت) لويه كاميابي ده.

رسول الله ♈ فرمايي :

من جهز غازياً في سبيل الله فقد غزا

ترجمه : چا چې د الله ① په لاره كې يو غازي تيار كړو ده هم جهاد وكولو .

٩. روانه صدقه (الصدقة الجارية)

دا هغه ډول صدقه (خيرات) وي چې د انسان د مرګ نه وروسته يې هم ثواب روان پاتې كيږي د داسې صدقې په اړه رسول الله ♈ فرمايي :

إذا مات الإنسان انقطع عمله إلا من ثلاث: صدقة جارية، أو علم ينتفع به، أو ولد صالح يدعو له (رواه مسلم).

ترجمه : کله چې انسان مړ شي دهغه عمل هم ودریږي (ده ته يې ثواب نه رسیږي) صرف د دریو شیانو ثواب د مرګ نه وروسته هم ورته رسیږي

۱. روانه صدقه (صدقه جاریه) ۲. هغه علم چې ده خپور کړی وي خلک ترینه فایده اخلي ۳. نېک عمله اولاد چې ده ته دعا کوي .

د صدقه جاریه څو ځایونه

۱. د کوهیو ویستل او خلکو ته د ابو سهولت برابرول .

کوم کوهی چې وویستل شي نو انسان چې مړ هم شي ددې کوهي نه چې څوک اوبه څښي ثواب یې په صدقه کونکي پسې رسیږي .

رسول الله ﷺ فرمایي : **افضل الصدقة سقى الماء (احمد، النسائي، ابو داود، ابن ماجة)**

یعني بهترینه صدقه په خلکو اوبه څښل دي

۲. خلکو ته خوراکونه ورکول .

د رسول الله ﷺ نه پوښتنه وشوه چې کوم اسلام غوره دی؟ رسول الله ﷺ و فرمایل :

**تُطعم الطعام، وتقرأ السلام على من عرفت ومن لم تعرف (صحيحين)**

یعني دا چې ته خوراکونه ورکړې او سلام واچوې په هغه چا چې ته یې پېژنې او چې ته یې نه پېژنې .

۳. د جوماتونو جوړول :

رسول الله ﷺ فرمايي : **من بنى مسجداً يبتغي به وجه الله، بنى الله له بيتاً في الجنة (الصحيحين)**

ترجمه : څوک چې يو جومات جوړ کړي مطلب يې ورباندې د الله ﷻ رضا وي الله ﷻ به ورته په جنت کې کور جوړ کړي .

٤. د علم په خپرولو کې مصرف کول.

د علم په خپرولو کې مصرف کول هم صدقه جاريه ده لکه ديني کتابونه تقسيم کول (الله ﷻ د زمونږ دا کوښښ هم په همدې ګروپ کې په خپل دربار کې قبول کړي) د قران کريم نسخې توزيع کول ، د طالبانو سره مرسته کول د حضرت ابي هريره رضي الله عنه په حديث کې رسول الله ﷺ فرمايي :

**إن مما يلحق المؤمن من عمله وحسناته بعد موته علماً علمه ونشره، أو ولداً صالحاً تركه، أو مصحفاً ورثه، أو مسجداً بناه، أو بيتاً لابن السبيل بناه، أو نهراً أجراه، أو صدقة أخرجها من ماله في صحته وحياته تلحقه بعد موته (رواه ابن ماجة:صحيح الترغيب).**

ترجمه : بېشکه هغه څه چې په انسان پسې وروسته د هغه د مرګ نه ورځي د هغه د نېکو عملونو څخه هغه علم دی چې ده چا ته ور ښودلی وي او ده نشر کړی وي ، هغه نېک زوی چې ده پرېښودی وي ،

د مسافرو لپاره يې ځاى جوړ كړى وي، كوم نهر يې كيندلى وي او يا يې په ښه حالت او صحت كې صدقه ويستلې وي هغه به په ده پسې د مرګ نه وروسته ورسيږي.

د صدقې (خيرات) لپاره ځينې خاص وختونه :

ځينې داسې وختونه هم شته چې په هغې كې صدقه وركول تر نورو وختونو څخه غوره دي او خاص ثواب لري :

١. د روژې مياشت:

حضرت ابن عباس ❼ فرمايي : رسول الله ♈ په ټولو خلكو كې ډېر سخي وو او په روژه كې به هغه وخت ډېر سخي وو كله چې به جبريل ورسره ملاقي شو او جبريل به ورسره په هره شپه كې ملاقي كېدو قران كريم به يې ورته ښودلو بيا به چې كله جبريل د رسول الله ♈ سره ملاقي شو رسول الله ♈ به تر روان باد څخه هم ډېر سخي وو په خير سره (الصحيحين)

٢. د ذى الحجې (د لوى اختر د مياشتې) اولې لس ورځې .

ددې ورځو په اړه به رسول الله ♈ فرمايل : داسې ورځې نشته چې تردې نه الله ① ته په هغو كې نېك عمل زيات محبوب وي. (رواه البخاري)

٣. د كسوف (لمر تياره كېدلو) په وخت صدقه مستحب ده .

کله چې لمر د رسول الله ♈ په وخت کې تیاره شو رسول الله ♈ خلکو ته خطبه شروع کړه او خلکو ته یې وویل : بېشکه لمر او سپوږمۍ د الله ① د نښو څخه دوه نښې دي نه د چا د مرګ او نه د چا د ژوند له امله تیاره کیږي کله مو چې داسې حالت ولیدلو نو د الله ① نه دعا ګانې وغواړئ تکبیرونه ووایاست ، مونځونه وکوئ او خیراتونه ورکړئ .



# د خیرات اړوند مسئلې

⇦ ترڅو پورې چې په خپلوانو کې غریبان وي نو پردیو خلکو ته خیرات او صدقه ورکول غوره خبره نه ده اول د محتاجو خپلوانو سره مرسته کول دي رسول الله ﷺ فرمایي : پداسې حالت کې (اجنبي ته) صدقه نشته چې ستا د رحم خاوند په احتیاج کې وي.

⇦ په خپلوانو کې چې هرڅوک غریبان وي که وریرونه وي، خوریونه او که هرڅوک وي دوی تر هر چا زیات ستا د صدقې او خیرات مستحق دي اول یې دوی ته ورکول په کار دي.

⇦ سیدانو ته صرف د زکات ورکول نه دي روا او پاتې شوې نور ډول صدقې او خیراتونه ورکول روا دي په صدقه فطر کې د احتیاط خبره داده چې سیدانو ته د نه ورکول کیږي.

⇦ که په لاس کې د صدقې څه مال وو او دا یې په خیرات کې ورکول غوښتل لکن فقیر یې نشوای پیدا کولی نو دا مال د له ځان سره وساتي چې کله یې مستحق پیدا کړو بیا یې د ورکړي.

⇦ که د چا په لاس کې پیسې وې اراده یې وکوله چې خیرات یې کړي بیا یې اراد ه بېرته بدله شوه نو هغه پیسې بېرته په خپل کار کې استعمالولی شي .

⇦ لکه مخکې چې هم تېر شول عوام خلک د ټول مال نه صدقه کوي او کوم وخت چې په غزوة تبوک کې ابو بکر صدیق ټول مال صدقه کړی وو رسول الله ♈ د هغه نه قبول کړو ځکه رسول الله ♈ ته دهغه ټینګ ایمان او کلکه عقیده معلومه وه او وربانديې پوه وو چې که په څومره تکلیف کې راشي نو دی په فتنه کې نه واقع کیږي او نه به په خپلو دې کړو پښېماني ښکاره کړي .

⇦ په بخاري کې د حضرت سعد بن ابي وقاص ❼ حدیث دی چې رسول الله ♈ ته به چا ټول مال په خیرات کې ورکړو رسول الله ♈ ور ګرځولو (ټول مال به یې په خیرات کې ورڅخه نه قبلولو) د حجة الوداع په کال چې زما بېماري سخته شوه ما رسول الله ♈ ته وفرمایل :په ما مې بیماري سخته شویده او زه د مال خاوند یم او زما صرف یوه لور ده چې زما څخه به مېراث وړي زه به د خپل مال نه دوه برخې خیرات کړم او یوه برخه به پرېږدم؟ رسول الله ♈ راته وویل نه داسې مه کوه بیا ما ورته وویل : نېم به خیرات کړم او نیم به پرېږدم؟ رسول الله ♈ راته وویل : نه داسې مه کوه بیا ما ورته وویل : دوه برخې به پرېږدم او یوه دریمه برخه به ورڅخه خیرات کړم؟ رسو ل ا لله راته وویل هو دریمه برخه صحیح ده او دریمه برخه

ډېر شی ده او ته چې خپل وارثان ماړه پرېږدې دا ترډې نه غوره ده چې ته (خیرات وکوې) او دوی غریبان پرېږدې بیا د خلکو نه غوښتنې کوي او ته چې هرڅه خیرات کوې چې په هغې سره ستا مطلب د الله ① رضا وي الله ① به دهغه اجر درکړي ترډې چې په هغه څه به هم اجر درکړي چې ته څه د خپلې مېرمن په خوله کې کوم خوراک ورکوې په هغه به هم اجر درکول کیږي .

⇦ څوک چې مړه شوي وي او ژوندي په هغوی پسې د ثواب د رسېدلو لپاره خیرات کوي هغوی ته یې ثواب رسیږي په صحیح بخاري کې حدیث دی چې د حضرت سعد بن عبادة ❼ مور په داسې وخت کې وفات شوه چې دی په کور نه وو کله چې راغلو رسول الله ♈ ته یې وویل : زما مور په داسې وخت کې وفات شوه چې زه نه وم که زه څه خیرات په دې پسې کوم دې ته یې ثواب رسیږي؟ رسول الله ♈ ورته وویل : هو .... بیا حضرت سعد ❼ ورته وویل : ته پدې ګواه شه چې چې د المخراف باغ مې په هغې پسې د ثواب رسېدنې په موخه صدقه (خیرات) دی هغه باغ بیا دده د ملک نه ووتلو او خیرات شو .

⇦ همدا رنګه حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها فرمایي : یو سړی راغلو رسول الله ♈ ته یې

وويل زما مور وفات شویده او دهغې وفات ناګهانه واقع شو زما په ګمان که دېته د خبرو موقع په لاس ورغلې وی دې به صدقه کړې وه اوس که زه پدې پسې صدقه کوم دېته یې ثواب رسیږي؟ رسول الله ﷺ ورته وویل : هو (بخاري)

⇦ که څوک ددې لپاره صدقه کوي چې مړیو ته یې ثواب ورسیږي که هغه صرف خپلوانو مړیو ته وي، که خاصو مړیو ته وي ، او که د ټول اسلامي امت مړیو ته وي او که خپلو ملګرو ته وي ثواب ورته رسیږي.

# وقف

⇦ وقف هم د صدقې قسم دی خو په هغه کې ښه والی دادی چې د یو شي اصل وساتل شي او دهغې ګټه او فایده یا مېوه خیرات او صدقه کړل شي بیا دا اصل نه خرڅېدلی شي، نه یې څوک په میراث وړلی شي ، نه تحفه کیږي او دهغې چې کومه میوه یا ګټه وي هغه به صدقه وي رسول الله ﷺ د وقف په اړه فرمایي : وقف شوې زمکه نشي خرڅېدلی او مېوه به یې صدقه وي .

⇦ د وقف مثال دادی لکه چې څوک ووایي زما د زمکې حاصلات د په غریبانو صدقه کیږي ، همدارنګه د کوهي اوبه وقف کېدلی شي د دکان حاصلات او تجارت د ګټې څه خاصه برخه او داسې نور .

⇦ حضرت عمر ❼ رسول الله ♈ ته راغلو ورته ویل یې: په خیبر کې ماته زمکه په برخه را رسېدلې ده چې ددې نه وړاندې داسې غوره زمکه ماته نه وه را رسېدلې یا رسول الله ♈ تاسې ماته څه امر کوئ څه پرې وکوم؟ رسول الله ♈ ورته وفرمایل: که د خوښه وي اصل یې په خپل ملک کې وساته او (حاصل یې) خیرات کړه .

⇦ د وقف حاصل به په هغه ځای کې مصرف کیږي چې دکوم شي لپاره وقف شوی وي او همدارنګه د هغه کس تنخوا او مصرف به هم د وقف نه ورکول کیږي چې څوک یې په پالنه مقرر شوی وي .

⇦ کله چې یو چا ته خیرات ورکړل شي هغه کولی شي بل چاته یې خیرات کړي ځکه کوم شی چې په خیرات کې واخستل شي په هغه شي باندې د اخستونکي پوره ملک راشي بیا دده خوښه ده چې هرډول تصرف پکې کوي .

⇦ که چېرته یو کس ته صدقه ورکړل شي وروسته ښکاره شي چې هغه د صدقې ورکولو لائق نه وو یا غریب نه وو او یا بد عمله وو نو اوس هم د خیرات ثواب به الله ده ته ورکوي ضروري نه ده چې دهغه مال په ځای اوس نور خیرات کړي او یا فکر وکوي چې دا خیرات به مې په سمه توګه نه وي شوی.

⇦ که د چا د صدقې او خیرات مال دده د کورنۍ غړیو ته ورسیږي نو هم دده خیرات کیږي .

⇦ د بخاري شريف په حديث کې حضرت معن بن يزيد ❼ فرمايي : ما ، زما پلار او زما نيکه د رسول الله ﷺ سره بيعت وکولو او اسلام مو قبول کړو يو وخت زما پلار يزيد څه دينارونه خيرات کړل په جومات کې يې د چا سره کېښودل او هغه يې ورباندې وکيل کړو چې خيرات يې کړي زه ورغلم ترېنه را وامي اخيستل زما پلار ماته وويل : زما د قسم وي چې زما دا مطلب نه وو چې دا د ته واخلې زما دا مطلب نه وو چې زه تاته خيرات درکړم زما ورسره خبرې شوې دا فيصله مو رسول الله ﷺ ته يوړه رسول الله ﷺ وويل : يزيده ستالپاره هغه څه دي چې تا يې نيت کړی د صدقې او ماته يې وويل : معن تا چې کوم شي اخستي دي هغه ستا لپاره صدقه دي



د انسان په مال کې د الله ① بل حق

## حج

حج په هغه چا باندې چې د ورتللو وس يې وي الله ① په ژوند کې يو ځل په هر مسلمان باندې فرض کړی دی الله ① د حج په اړه فرمايي :
سورة آل عمران آية ٩٧

وَلِلَّهِ عَلَى ٱلنَّاسِ حِجُّ ٱلْبَيْتِ مَنِ ٱسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلاً

ج

ترجمه : او واجب دی الله ① لره په خلکو حج (قصد كول په نيت د حج) په هغه كسانو چې قدرت لري طرف دده ته د لارې.
حضرت عبد الله بن عباس ❼ فرمايي :
**خطبنا رسول الله ♈ ، فقال : " يا أيها الناس كتب عليكم الحج " ، فقام الأقرع بن حابس ، فقال : أفي كل عامٍ يا رسول الله؟ فقال : " لو قلتها لوجبت ، ولو وجبت لم تعملوا بها ، الحج مرة فمن زاد فهو تطوع**

ترجمه : رسول الله ﷺ مونږ ته خبرې کولې او راته ویل یې : ای خلکو په تاسې باندې الله ① حج فرض کړی دی پدې وخت کې اقرع بن حابس ورته پاڅېدو ورته ویل یې : آیا په هر کال کې یا رسول الله! رسول الله ﷺ وفرمایل : که ما ویلي وای چې هو! نو دا به اوس په تاسې واجب شوی وو (هرکال) او تاسې بیا نشوای کولی حج په ټول عمر کې یو ځل دی او څوک یې چې زیاد کوي نفل دي.

د حج د احکامو او مسئلو په اړه زمزم اداري ځانګړی کتاب په انګلیس او خوږه پښتو ژبه خپور کړی دی ځکه یې زه دلته مسئلو لوري ته نه ورځم .



# نذر

دا هغه شی وي چې الله ① په بندګانو باندې نه وي لازم کړي لکن بنده يې پخپله په ځان لازم کړي لکه انسان چې ووايي که زما دا کار وشو نو زه به د الله ① لپاره يو پسه (ګډ) حلالوم او داسې نور .....

نو چې کله انسان داسې ووايي او هغه کار بيا وشي نو په ده باندې دا تعين کړل شوی نذر واجب شي .

پدې اړه الله تعالی فرمايي :

سورة الانسان (الدهر) آية ٧

يُوفُونَ بِالنَّذْرِ وَيَخَافُونَ يَوْمًا كَانَ شَرُّهُ مُسْتَطِيرًا

ترجمه : (ابرار او نېکان خلک) وفا کوي په هغه نذر چې دوی په ځان واجب کړی وي او دوی ډاريږي د هغه ورځې نه چې شر يې ښکاره دی.

د نذر په اړه رسول الله ♈ فرمايي :

⇦ که چا په ځان د الله ① کوم اطاعت نذر کړو نو چې کله پرې نذر وواښتو نو پوره کوي به يې او که چا په ځان باندې د الله ① کومه ګناه نذر کړه نو چې کله وربانديې نذر واوښتو بيا به يې هم نه پوره کوي. ( رواه البخاري)

د نذر لپاره څو شرطونه دي :

١. نذر صرف د الله ﷻ لپاره صحيح کيږي د مثال په ډول که زما دا کار وشو زه به د الله ﷻ لپاره درې ورځې روژه نيسم او که يې داسې وويل چې زه به د فلاني (انسان) او يا کوم شي لپاره روژه نيسم نو دا نذر نه دی صحيح .

٢. نذر به په ژبه سره وي د زړه په نيت سره نه واجبيږي.

٣. د مکلف انسان د خولې بيان به وي د ماشوم ، ليوني، ويده په وينا سره کوم شی نه لازميږي.

٤. په خپله خوښه به خبره کوي که په زور چا وربانديې څه وويل نذر پرې نه لازميږي.

٥. کوم شی چې په نذر کې منل شوي وي هغه په د الله ﷻ عبادت وي که گناه يې په نذر کې منلې وه بيا وربانديې نه لازميږي.

پدې اړه به تفصيلي بحث انشاء الله په خپل ځای راشي صرف تعريف او مختصرې ستاسې په خدمت کې دي.

د انسان په مال کې د الله ﷻ بل حق

# وصيت

هغه مسلمان چې د مرگ نه وړاندې د خپل مال د څه برخې په اړه وصيت وکوي چې زما د مرگ نه

وروسته به دا مال د الله ﷻ په لاره کې لګول کیږي اویا به خیرات کیږي او داسې نور نو دهغې کول هم ضروري شي او د داسې وصیت په پوره کولو کې دوه لوی مقصدونه خوندي وي یو دا چې خپلوان دا خبره ښکاره کړي چې دوی اوس هم د خپل مرحوم خپلوان سره دومره مینه لري چې د هغه د وصیت د پوره کولو لپاره تر مال تېریږي او بل دا چې ددې امید دی چې د الله ﷻ د رضا لپاره دا مصرف شوی مال به مرحوم ته فایده وکوي.

# ماخذونه

- المبسوط للسرخسي
- شرح الوقاية
- حاشية ابن عابدين (رد المحتار على الدر المختار)
- غمز عيون البصائر في شرح الأشباه والنظائر
- العناية شرح الهداية
- فتاوای قاضیخان
- التتارخانية
- محيط السرخسي
- الهداية
- الكتاب
- اللباب في شرح الكتاب
- حاشية طحطاوي على المراقي
- فقه العبادات (حنفي)
- الاشباه و النظائر

- مراقي الفلاح
- الفتاوى الهندية (عالمگيري)
- تحفة الملوك
- البحر الرائق شرح كنز الدقائق
- جامع الرموز
- إرشاد أهل الملة إلى اثبات الأهلة
- المحيط البرهاني في الفقه النعماني
- الجامع الصغير
- شرح رائض الفرائض
- بدائع الصنائع
- تبيين الحقائق شرح كنز الدقائق
- المبسوط
- الإنتصار والترجيح للمذهب الصحيح
- مجمع الأنهر شرح ملتقى الابحر
- النافع الكبير
- نور الايضاح
- منية المصلي

# د مؤلف چاپ شوي آثار

1. د حضرت محمد ﷺ د نبوت معجزې
پښتو
2. ړنګه ځاله
پښتو
3. آشيانه سوخته
فارسي
4. په اسلام کې د انسان حقوق
انګليسي
5. دين يې دام دى ددنيا په لار کې ايښى
پښتو
6. فرار از کزار
فارسي
7. له کزاره تېښته
پښتو
8. زوړ دين نوى مسلمان
پښتو

9. ړم ړمکو جي او لیکوال
پښتو

10. ادیان پشت در
فارسي

11. له دروازې تر شا دینونه
پښتو

12. د انصاف او اعتدال لاره
پښتو

13. کفري الفاظ
پښتو

14. کل بچه فارسي

15. معلومات عمومي
فارسي

16. د حج لارښود پښتو
او انګلیسي

17. محمد رسول الله ﷺ سیرت اخلاق او پېژندنه
پښتو

18. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه اول
پښتو

19. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دوهم
پښتو

20. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دریم پښتو

21. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه څلرم پښتو

22. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه پنځم پښتو

23. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه شپږم پښتو

24. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه اوم پښتو

25. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه آتم پښتو

26. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه نهم پښتو

27. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه لسم پښتو

28. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه اول پښتو

29. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه دوهم پښتو

30. د فقهي کتابونو له پاڼو څخه دریم ستاسې په لاس کې

